# کندهار

نهم کال
دوهمه ګڼه
۱۳۸۹ ش

د کندهار د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست دوې میاشتنۍ خپرونه

د مجلې په دې ګڼه کې:

بین المللي سیاست

افغان شاه محمود – د اصفهان بریمن

د افغانستان د تأسیس میاشت کومه یوه ده؟



نثلی لیکوال

استاد محمدګل نوري

آیا بابا سعید د سوري شېرشاه معاصر دئ؟ (استاد محمدمعصوم هوتک)

استاد بېنوا:

# د زړه خواله

ګرانه ملګريه!

ما نه غوښتل څه وليکم او يا هغه رازونه څرګند کړم، چي زما او ستا ژوند يې بې خونده کړی دئ. ځکه چي زړو سياسي هوښيارانو به ويل چي راز ساتل برسېره پر دې چي انسان له خطره ژغوري د خپل نفس د اداري په لحاظ هم يو ګټور مشق دئ او د هغوی په عقيده د رازونو څرګندول لويه کمزوري وه.

له همدې کبله زما نيت و. چي زما او ستا د بد قسمته ژوند د بې خوندی رازونه هم د ناکامو آرزوګانو په څېر همداسي په جهان کي له جهانه پټ پاته سي او يا د حزان وهلو پاڼو په شان د زمانې د حوادثو د توپانونو په نڅا کي د فنا لوري ته په ټوپونو - ټوپونو والوزي. خو څنګه چي زه سياسي سړی نه يم نو دا د زړو سياسي هوښيارانو راز مي هم پټ ونه ساتلای سو. او له څه فکره وروسته ما ته دا فکر پيدا سو. چي د ځينو رازونو پټول نه يوازي د يو بدبخته انسان پر کمزوري دلالت کوي. بلکي د هغه بدبختي لا زياتوي. په تېره بيا ما او تا غوندي انسانان چي که په ژوند کي د خپلو بدبختيو سببونه ښکاره نه کړو او لکه څنګه چي په پټو سترګو له پټي دنيا څخه دې دنيا ته راغلي يو. همداسي په پټو سترګو او پټه خوله دا نيمګړی ژوند پرېږدو، نو زموږ د وجود او عدم تر منځ به توپير څه وي؟ او د کومو انسانانو چي ژوند او مړينه سره توپير و نه لري آيا هغوی به د دې فعالو کايناتو په وړاندي سرټيټي او شرمنده نه وي؟

ځکه نو زه نه غواړم چي دا سرټيټي او شرمنده ګي ما او تا ته پاته سي او په ژوندي سر په مړو کي وشمېرل سو.

نو همدا سبب دئ چي زما ګرانه ملګريه! چي زه غواړم ستا سره زما او ستا د ژوند د بدبختيو په باب کي (د زړه خواله) وکړم او کله کله تا ته هغه رازونه په ډاګه ووايم چي زما او ستا د ژوندون د بدقسمتی او بې خوندی سبب ګرځېدلي دي.

خو څنګه چي د رازونو په څرګندولو کي رښتيا خبري راځي او رښتيا ويل ترخه وي، نو ته به ما وبخښې که زما په سپينو ويلو کي هم ځيني ترخه مګر له حقيقته ډک مطالب ښکاره سي، هو! راځه چي دواړه په سړه سينه د خپل ژوندون دردونه او عيبونه يو بل ته سره ووايو او بېله کوم شخصي تعصبه ورباندي غور وکړو او د درملو چاره يې وسنجوو.

که زه تېروتی وم، ته مي لارښوونه وکړه او که ستا څخه لاره ورکه وه زه به دي لاس ونيسم، او که فرضاً دواړه بې لاري وو، نو د لارښوونکي په لټون او څرک پسې به هڅه کوو، څو چي د خپل ژوندون دردونه علاج او عيبونه اصلاح کړو، او ځانته د يوه خواږه او ښه ژوندون دنيا جوړه کړو. زه او ته قدرت دا اسي پيدا کړي يو، چي که غواړو او يا نه غواړو زما او ستا ژوند سره تړلی دئ او هم مو د ژوندون لاره يوه ده، پر يوه لاره روان يو. خو په پټو سترګو او يو له بله ناخبره يوه نامعلوم لوري ته درومو. نه تا زما څخه پوښتنه وکړه چي د مقصد منزل چيري دئ؟ او نه ما وپوښتلې چي چيرته روان يو؟ پخپله همدا خبره زما او ستا د ژوندون يو لوی درد او څرګند عيب دئ.

راځه چي سره وپوښتو. د مقصد منزل وټاکو، او بيا په پرانيستو سترګو او په ټينګ عزم د يو بل په مرسته د خپل مطلب خوا ته هڅه وکړو.

تر څو به يو له بله ناخبره همداسي په توره تياره کي روان يو؟ څو قدمه به اخلو. بيا به همداسي د پرېشانی او لالهاندی په حال کي درېږو او په بې اطمينانی او اضطراب سره به د روڼا په څرک پسې تېرېږو؟

راځه چي د خپلو سپېڅلو زړونو مشعلونه بل کړو او د هغو په روڼا کي په پاک نيت د خپل ژوندون لاره صافه کړو.







# کندهار

علمي، تاریخي، ادبي او ټولنیزه مجله

د امتیاز څښتن: د کندهار د اطلاعاتو او کلتور ریاست

دریمه دوره

**نهم کال، دوهمه ګڼه، پرله پسې ۵۳ مه ګڼه**

**غبرګولی - چنګاښ (۱۳۸۹ ش)**

مؤسس

محمد ولي زلمی

سرپرست چلوونکی

عبدالقدیم پتیال

کتنپلاوی

ډاکټر عبدالرازق پالوال

څېړونکی شېرشاه رشاد

حیات الله رفیقي

عبدالکریم طالب

فضل محمد پنهان

کمپیوټر چاري

اباسین افغان

پته

علامه حبیبي واټ

د اطلاعاتو او کلتور ریاست

د کندهار مجلې دفتر

ټلیفون: ۳۰۰۱۴۴۰

**څو ضروري یادوني**

- کندهار مجله اسلامي او ملي ګټو ته زیانمني لیکني نه خپروي.
- کندهار مجله د مجلې د ټاکني لیکني معیار سره سم د لیکنو په اصلاح کي د لاسوهني حق لري.
- رااستول سوي لیکني بیرته نه ورکول کېږي.
- هره لیکنه د لیکوال خپل نظر څرګندوي.

**په هیواد او دباندي کي د مجلې بیې**

| |
|---|
| هیواد: ۲۰ - افغانۍ |
| پاکستان: ۳۰ - کلداري |

**کلنی ګډون**

| |
|---|
| هیواد: ۱۲۰ - افغانۍ |
| پاکستان: ۲۰۰ - کلداري |
| نور هیوادونه: ۸۰ - امریکایي ډالره |

# فهرست

# ادبي محافل

په افغانستان کې د علمي غونډو، ادبي ناستو او فرهنګي مجالسو او محافلو جوړېده خورا زوړ تاریخ او پس منظر لري، د دغسي علمي او ادبي غونډو جوړېدو له ځان سره زیاتره اوقات ښې مثبتې نتیجې او مثمري درجې هم درلودلي دي. په ادبي او علمي برخو کې د دغسي منظمو او منسجمو غونډو او ناستو اټکل، څوک په کندهار کې د فرهنګپالو او علم خوښوونکي پاچا (شاه حسین هوتک) له درباره کېدلای سي، چي هلته به د منقولو او معقولو علومو پوهان او عالمان سره راغونډېدل او ادبي ناستې به ئې کولې، تر ټولو ښه نتیجه خو ئې لا دا د ه چي د دغو غونډو د مشترکینو له خوا ډېر علمي او مغتنم آثار هم کښل سوي دي.

په معاصره دوره کې د دغسي منظمو غونډو څرک د (مرکه د پښتو) څخه لګېږي چي دا وختنو د افغاني مطبوعاتو او معاصرو پښتو ادبیاتو پیلامه هم ګڼل کېږي، هر کله چي د معاصرو پښتو ادبیاتو تاریخونه کښل سوي او یا تر دې وروسته لیکل کېږي نو د دغو غونډو ذکر په هیڅ ګون د هېري نه دئ.

په ۱۳۱۱ لمریز کال کې چي په کندهار کې ادبي انجمن تاسیس سو نو د ځینو ادبي او مطبوعاتي فعالیتو تر څنګ د علمي او ادبي غونډو او ناستو جوړېده هم ډېر مفید او مؤثر واقع سول، چي د پوهانو او ادیبانو د افکارو او نظریاتو د مبادلې او تشریف تر ټولو ښه موقع وه.

موږ په هیڅ ډول له دې څخه انکار کولای نه سو چي ادبي او علمي غونډې پوهانو، لیکوالو او شاعرانو ته د تخلیق او الهام موقع نه میسروي، بلکي د تخلیق او هنر د پنځولو لپاره موقعیت او محیط خورا ضروري دئ او د دغسي مواقعو د لیدلو او کتو تر ټولو ښه مرکز د غونډو او ادبي محافلو اشتراک کېدلای سي.

په کندهار کې له تېرو څو کلو راهیسي د مشاعرو او ادبي غونډو سلسلې خورا زور اخیستی دئ او زموږ د مشاهداتو له مخي دغه راز غونډو ډېر نوي شاعران او د ادب علاقمندان په شعوري او لاشعوري توګه هڅولي، روزلي او د تخلیق زمینه ورته برابره کړېده، تر ټولو ښه خبره خو لا دا ده چي کله ناکله په دغسي ادبي غونډو کې د (نقد الشعر) مسئله هم خورا جدي نیوله کېږي او د ادب علاقمندانو ته په دې توګه په تدریجي ډول د نقد اروېدلو زغم او روحیه ورکوله کېږي. د ځینو آزادو فرهنګي ټولنو تر څنګ په کندهار کې د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست هم دغه اشده اړتیا له پامه غورځولې نه ده او په منظمه توګه په میاشت کې یو یا دوه ځله دغه راز ادبي غونډې او مشاعرې جوړوي چي موخه ئې د ځوانو شاعرانو او لیکوالو تشویق او هغو ته د ادبي محیط برابرېدنګ دئ.

موږ به د ټولو فرهنګیانو او فرهنګپالو په اشتراک دغسي غونډې خپلو ارمانو ته د تحقق موندني په موخه جاري ساتو او د مشرانو پوهانو د لارښوونو په مشالو کې به ځانته سیده او راسته لار مومو.

په درنښت



استاد محمد معصوم هوتک

# آیا رشتیا بابا سعید

## د سوري شېرشاه معاصر دئ؟

* * * * *

بابا سعید په دېوان لرونکو شاعرانو کي د قدر وړ ځای لري. د ده سوزناکي شاعرۍ او د شعر پر اصنافو باندي د هغه تسلط او د دې په څنګ کي په پښتو او فارسي ژبو شعر ویلو ده ته د خپل عصر په شاعرانو کي هغه ځای ورکړی دئ، چي د یوه ښه شاعر له پاره مناسب دئ. د سعید پښتو دېوان د ښاغلي همېش خلیل په همت په جون ۱۹۵۸ ع کي له پېښوره په جیبي قطع خپورسوی دئ. په هغه نسخه کي، چي د ښاغلي همېش په واک کي وه، د سعید پارسي شعر هم یو ځای راغلی و[1] خو د پښتو دېوان ښاغلي مرتب دا برخه ځني ایستلې ده. د سعید له نامه سره (بابا) هم مل سوی دئ. ده په خپل دېوان کي هر ځای ځان سعید بللی دئ.

ښاغلي همېش خلیل د سعید د چاپ سوي دېوان په سر کي یوه ۱۹ مخیزه سریزه کښلې ده او په هغې کي یې د سعید پر ژوند باندي د اټکلونو او ګومانونو پر بنسټ ښې اوږدې خبري کړي دي او په هغو کي یې د سعید د خپلو اشعارو له مخې، دی

د خوشحال خان خټک د عصر شاعر بللی دئ او زياته کړې يې ده چې له خوشحال خان سره د نسب او کورنۍ اشتراک هم لري. ژوند يې تر ۱۱۲۴ هـ ق پورې يقيني بللی دئ. خو د سعيد له يوه شعر څخه داسې ورته ښکاره سوې ده چې ګويا دی د سوري شېرشاه معاصر او مداح شاعر يعنې د لسمې هجري پېړۍ شاعر دئ. د شکونو او اټکلونو تر محاسبو وروسته يې د ده ژوند (کم نه کم لس کم دوه سوه کاله) ګڼلی دئ. خو د سعيد د يوه بل مرثيه ډوله شعر څخه، چې د خپل زوی محی الدين پر مړينه يې په ۱۱۱۸ هـ ق کې ويلی دئ، حيرانتيا ځکه پر غالبه سوې ده، چې د سعيد د دغه زوی زوکړه بايد د پلار په يوسلو څلوراتيا کلنۍ کې پېښه وي او دا کار د بشري خلقت پر خلاف ورته ښکاره سوی دئ. له دې حالت څخه د وتلو له پاره يې د سعيدبابا درې زامن د هغه لمسيان تصور کړي دي. په داسې حال کې چې سعيد په صراحت سره هغوی خپل زامن بللي دي:

په اندوه د سرفرازلانه ... وې
د عبدالقادر په غم بيا ما ليده وې
پسې غم د محی الدين جانکاه ګرفت کړې
په دا درې غمو عجبه خميده يې
ما وې ته به مې صالح وارث باقي شې
ته وګور ته په څو رنګ شتابنده يې
په اته مياشتې دوه ورځې وې د پاسه
ځويه! ته چې له دنيا نه رميده يې

خو کله چې بيا د سعيد په شاعرۍ کې د خوشحال خان خټک يادونه د يوه مشر په توګه سوې ده او ځان يې تر خان کشر بللی دئ، نو يې د سعيد پر دومره اوږده عمر باندې د يقين پله تر ګومان سپکه سوې ده او له دې ټول ابهام و شکوکو سره سره يې بيا هم سعيد زړه نازړه د سوري شېر شاه معاصر سړی بللی دئ.

د ښاغلي همېش خليل په قلم په دې باب وروستۍ څېړنې او ليکنې ما ته نه دي رارسېدلې او نه پوهېږم چې اوس به هم سعيد د سوري شېرشاه معاصر ګڼي که يا؟ خو دومره پوه يم چې ښاغلی همېش خليل نقاد ليکوال او په څېړنه کې د پراخ لاس څښتن دئ. په دې برخه کې يې هرومرو نوې څېړنې هم کړې دي او پر دې مې هم باور دئ چې که يې د خپلو ليکنو د نقداړتيا رامنځته سي، هرومرو يې نقدوي اوسموي يې.

د دغه دېوان تر خپرېدو وروسته د سعيد يادونه ادبي تذکرو ته لار موندلې ده او په فرهنګ زبان و ادبيات پښتو کې يې يادونه سوې ده. هورې يې د ده د اوږده ژوند تر يادونې ګام اړولی او د شاعر ژوند يې تر ۱۱۲۴ هـ ق پورې يقيني ګڼلی دئ[۲].

ښاغلي عبدالباري جهاني په خپل نوي چاپ سوي اثر (د مشکو کاروان) کې د سعيد پر ژونداو شاعرۍ ښې د خوند تبصرې کړي دي[۳]. ښاغلي جهاني د سعيد دومره اوږد ژوند "... په پېژندل سوې نړۍ کې د هيڅ انسان" له پاره ناممکن بللی دئ. ده د نوموړي مدحيه شعر شپږ بيته را اخيستي دي خو دا خبره يې مبهمه پرې ايښې ده چې سعيد ولې سوري شېرشاه ته داسې خطاب کوي چې ګويا په دغه وخت کې ژوندی دئ؟

هغه مدحيه کلام چې د سعيد د دېوان ښاغلي مرتب د سعيد د اوږده ژوند

په باب د خپل استدلال ودانۍ پر درولې ده، يو اوږد شعر دئ چې زه به يې له لوستونکوڅخه د بخښنې په غوښتلوسره ټول رانقل کړم او بيا به نو خپل معروضات هم درته وړاندې کړم. شعر داسې دئ:

په دوران يې ښايي فخر که اسمان کا
په جمال يې ښادې بويه قدسيان کا
لکه نمر چې عروج وکه و اسمان ته
ترو خشک د جهان واړه نور افشان کا
په عالي همت په غم نه خو د ځان دی
د عالم غم يې په زړه تل د ايمان کا
د عمان ګوهر بخشي په ډېر جرح ده
لاس يې هغه دربخشي په رايګان کا
چې شاهان په تعجب دي له وقوع يې
په زمان عطاء څو ګنجه شايګان کا
کمينه عطا يې دا ده و عالم ته
يابنده چې يې له درو پر دامان کا
هغه دم چې عالي عزم کا د لارې
په سره سپين سره د لارې رنګ ګردان کا
لا يې سر د فقر اينبی په زمين دی
چې تر څو يې شمله سير په کيوان کا
که په روم که په ايران په توران هند دي
مسئلت يې د بقا کل صالحان کا
د نمر فيض يې ارزان کړو عالم ته
اوس له مخه يې مخ نمر بويه نهان کا
په اشغال د سلطنت هومره مرتاض دئ
چې شنيد يې کل مرتاض په حال حيران کا
دا شګرف علو روزي په حق د ده که
په کور ښايي هر دم شرح صاحب قران کا
هيڅ امور ځيني د نفس په هوا نشي
ديد يې کل په شريعت زړه په يزدان کا
شکسته د جهان څوک چې يې په در شي
د الطاف په موميايه زردمان کا
بزم رزم يې حاتم رستم حيران کړل
داد دهي ضحک په داد د نوشيروان کا

که يې ووينې له ګور حسن احوال يې
آفرين يې په شان بويه سليمان کا
فرنګ روم خطا حبش کل په هيبت شي
رعد آسا په لاس په هند چې تېغ رخشان کا
چې يې هسې له نعمته خلق مملوک کړه
د نعيم شکر يې بويه چې جهان کا
خجسته عهد يې لا تر دا شايان دی
شور زمين که ميوه ګل وګلستان کا
د جهان اصلاح يې تن د زړه همت دی
نه همېش اصلاح يوازې د خپل ځان کا
چې يې وکړه، کا، يا کايې تر خياته
همه کار موزون د شرع په ميزان کا
چې په قصد د جود بيرون کا تر آستين لاس
يو يې رشک شي د عمان دويم دکان کا
په بدانو به يې عيد ساعت د فوت وي
تر قيامت به يې ښکان په مرګ ارمان کا
د جهان ورق يې پاک له نامشروع کړه
په بدانو ژوندون تنګ له ښواحسان کا
هرګز دا عزم مي نه و په خاطر کښې
چې قلم مي تسويد مدح د سلطان کا
د صلحاوو مي وافر کتب په ديد شول
پکښې وصف د سلاطين پخپل مکان کا
له دې مدح انسب ما ته د شيرشاه وه
په دوه توکه انصاف دا له ما بيان کا
يو يې حق د نعمت بار زماپه دوش دی
سلطاني بل په عالم په دا زمان کا
په خدمت يې د نمک بدل ونه شو
ښايي دا يې تلافي چې تر ميان کا
که فارسي وای دا اوصاف به بس بلند وه
تقابل ئور باران کله نيسان کا
د سعيد اميد تحسين يا صله نه ده
آرايش تکليف په دا چې د زبان کا

تر دې اوږده اقتباسي شعر وروسته به زه د خپل استنباط پر بنسټ دغه مدحيه

کلام وڅېړم او وبه ښيم چي د چا په باب ويل سوی دئ او د شېرشاه يادونه له څه اسيته پکښې راغلې ده.

د مدحيې ممدوح پاچا متواضع دئ (د فقر سر) يې پر مځکه ايښی دئ، صالحان او د خدای دوستان يې له خدايه د (بقا) سوالونه کوي، د سلطنت له مقام سره سره (مرتاض) دئ، نور رياضتکاران ورته حيران دي، د پاچهۍ چاري (د نفس په هوا) نه تر سره کوي بلکي (شريعت) يې په پام کي دئ او زړه يې له (يزدان – خدای) سره دئ، ده چي څه کارونه کړي دي، يا يې کوي يا به يې په آينده کي وکړي، ټول (د شرع په ميزان موزون) او برابر دي، له (نامشروع) څخه يې د جهان (ورقه) پاکه کړې ده او د ده په سلطنت کي پر (بدانو باندي ژوندون تنګ) دئ.

دغه ممدوح سلطان د تاريخي اسنادو پر بنسټ بايد اورنګزېب وي. ځکه دا عالمګير اورنګزېب وو چي تر خپلي تاجپوشۍ وروسته يې سم د لاسه د هغو غير اسلامي تمايلاتو د له منځه وړلو خوا ته پاملرنه واړوله چي تر ده وړاندي يې خلکو او دربار ته لار موندلې وه. ده پر غير مسلمانو پرګنو باندي جزيې حواله کړې او په خپل قلمرو کي يې د اسلامي شريعت پابندي حتمي وګرزوله[۴].

د دغه مدحيه کلام ممدوح د سعيد ولينعمت دئ د شاعر پر اوږو (د ده د نعمت بار)) پروت دئ. شاعر غوښتل چي "په خدمت يې" د نمک حق ور ادا کړي خو خدمت ورته تر نمک سپک ښکاره سوی دئ. (د مدحيې د پای له خوا دريم بيت) د شاعر ممدوح تر پښتو په پارسي ډېر خوشاله کېدی. شاعر له دې بابته د ځان کمی احساسوي (د پای له خوا دوهم بيت).

دا مدح په ډېره لوړه (اوچته ) ادبي سليقه ويل سوې ده خو شاعر ته د هغې تر ويلو وروسته ځان بد ايسېدلی دئ ځکه د هغه سلطان په توصيف کي يې قلم چلولی دئ چي د ده د خاندان مشر، خوشحال خان خټک د هغه په غندنه کي (د شعر جوال) ډک کړی وو:

فردوسي لري څو بيته له محموده
زه لرم د اورنګزېب د ذم جوال

سعيد بابا ته ځکه خپل مدحيه کلام نامناسبه ښکاره سوی وو، چي د ده د ممدوح سلطان په باب ده ته د ورتېر مشر خوشحال خان نظر دا شان وو:

يا بادشاه په ځان جهود دی
د مومن آزاري سود دی
خدای خبر چي دا بادشاه دی
چي ګمراه دی ډېر ګمراه دی
که رښتيا وايم ابليس دی
ډک په مکر په تلبيس دی
سزاوار دی د لاحول
نه سوګند لري نه قول
په فريب په مکر طاق دی
د خناسو په اخلاق دی
ظلم کار دی ستمګار دی
نه په زويه نه په پلار دی
ټول ارکان د ده ګرګان دي
تعين شوي په جهان دي
چي بد ذاته چي شرير وي
هم هغه د ده وزير وي
چي بد ذات چي بد نسب وي
هم هغه يې مقرب وي

که قاضیان دي که مفتیان دي
د ده واړه بد ذاتان دي
پلار تر ولی بادشاهي کا
سل ناحقه گمراهي کا
سکه ورونږ قتل کړي
ده یې مال گنجونه وړي
د سکه وراره عورته
په ستم کړه فضیحته
زر ناسازي زر فساده
دم وهه له عدل و داده
په دا هومره قباحت
دم وهه له شریعت
په دا دومره رسوایي
دم وهه له پارسایي
الحذر له دې زمان
الامان له دې سلطان
دا بادشاه نه دی بلا دی
چې راغلی په دنیا دی
هغه ورځ چې دی بادشاه شه
کار په هر لوري تباه شه[5]

سعید بابا ته ځان ځکه بد ښکاره سوی وو، چي د ده د ممدوح پاچا په باب خوشحال خان بل ځای ویلي وو:

چي په نوم پښتون غوځیږي دی پرې خوش دی
اورنگزیب هسي پاچا دی د اسلام

سعید وایي چي هرگز یې د سلطان د مدح لیکل په خاطر کي لا هم نه وو خو چي د (صلحاوو) کتابونه مي وکتل په زیاترو کي د (سلاطینو) صفت راغلی وو نو ځکه ما هم د داسي سلطان مدحه وکښه چي:

یو یې حق د نعمت بار د ما په دوش دی
سلطاني بل د عالم په دا زمان کا

سعید په یوه روحیاتي کشمکش کي واقع دئ. له یوې خوا د سلطان د احسان تر بار لاندي دئ او غواړي مجراینه یې، چي په خدمت یې نه سولای پوره کولای، په مدحیه کلام ورپوره کړي خو له بلي خوا د ده له قام او د ده د خاندان له مشر سره د همدغه سلطان د ناوړه سلوک له امله ځان په مداحی کي مقصر او گناهگار گڼي او د دغه کشمکش تر اغېزې لاندي یې په ستاینه کي دا بیت ور زیات کړی دئ چي:

له دې مدحي انسب ما ته د شېرشاه وه
په دوه توکه انصاف دا له ما بیان کا

دادوه توکه لکه وړاندي چي هم اشاره ورته وسوه، یو (حق د نعمت) او بل (سلطاني د دا زمان) ول.

سعید په لوړ بیت کي شېرشاه د ځان معاصر نه بولي، بلکي هغه ته یې د (انسب) کلمه راوړې ده. انسب د مبالغې صیغه ده چي معنا یې (ډېره مناسبه = مناسبتر) ده[6]. دی یو بل ځای وایي چي په شېرشاه باندي پښتانه (افغانان) ویاړي او چي دی تر دنیا تېر سوی دئ، نو خود به (مغولان) عیش کوي.

په نمنځل یې زړه ښه کېږي
بل لویي کا پرې افغان
د شیرشاه بل فکر نه وه
څو یې یوو ر تر ې میدان
چې شیرشاه تر دنیا تېر شه
اوس دي عیش کا مغولان

گویا د ده په وخت کي شېرشاه تر دنیا تېر سوی دئ. (د شیرشاه بل فکر نه وه) په نیم بیتي کي (وه) ماضي صیغه ده او پر دې خبره دلالت کوي چي شېرشاه د شاعر د وخت سړی نه دئ خو شاعر ورته ډېر عقیدتمند دئ. د ده دوران ورته د ده د قام د عزت او ویاړ دوران ایسېدلی دئ

ځکه يې ستايي. الحق هم د شېرشاه د واکمنۍ دوران د پښتنو د عظمت او برم دوران و. خوشحال خان خټک چې د خپلو پښتنو وروڼو له اصلاح څخه مايوسه سوی دئ، نو وايي:

د بهلول او د شيرشاه خبري اورم
چي په هند کښي پښتانه وو بادشاهان
شپږ اووه پېړۍ يې هسي بادشاهي وه
چي په دوی پوري درست خلق وه حيران
يا هغه پښتانه نور وه دا څه نور شول
يا د خدای دی اوس دا هسي شان فرمان(۷)

په نتيجه بايد ووايم چي سعيدبابا د شېرشاه معاصر نه دئ او د شېرشاه يادونه يې دغه عادل پښتانه پاچا ته د زيات درناوي له خاطره کړې ده. په کوم مدحيه شعر کي چي ده د شېرشاه په باب څه ويلي دي، هغه شعر د اورنګزېب په ستاينه کي ويل سوی دئ. نو په دې حساب سعيد بابا هم د دوولسمي هجري پېړۍ د سر تر کلونو پوري ژوندی وو او د همدغه عصر شاعر يې بايد وګڼو.

اوکويل. کاناډا
۷ نومبر ۲۰۰۵ ع

**لمنليکونه:**


۱. دغه قلمي نسخه د پېښور د بالامانۍ د رفيع الاسلام دارالعلوم مهتمم صاحبزاده سيدفضل صمداني ښاغلي همېش خليل ته ورکړې وه.
۲. هيوادمل – زلمی، فرهنګ زبان وادبيات پښتو: ۲۱۵/۱ مخ.
۳. د مشکوکاروان. د امريکاږغ راديوله لاري د ښاغلي جهاني له خوا خپرېدی.
۴. وګ: – A short History of Hind Pakistan: ۲۳۸ – ۲۳۹ مخونه.
۵. فراقنامه: ٦۵– ٦۷ مخونه، د کابل چاپ.
٦. غياث اللغات.
۷. د خوشحال خان خټک مرغلري: ۲۵۱ – ۲۵۲ مخونه، ۱۳۱۷ ش کال – کندهار.


* * * * *

## د سلام آداب

۱. سلامُ عليکم ويل هم صحي دي (شرح النووي).
۲. د سلام په ځواب کي وعليکم السلام او يا عليکم السلام او وعليکم ويل صحي دي، خو يوازي عليکم ويل نه دي صحي (النووي).
۳. د سلام په ځواب ورکولو کي بايد ځنډ ونه کړه سي، بلکي سمدستي بايد ځواب ورکړل سي (آداب المعاشرت).
۴. خپلي او محرمي ښځي پر خپلو محرمو نارينه وو سلام اچولای سي (حاشيه بخاري – دوهم ټوک).
۵. په ليکونو کي سلام ليکل غوره او سنت طريقه ده (سنت حبيب).
٦. د سلام په اړه پوره غوره او اهتمام کوئ، ځکه څومره چي د سلام زياتوالی راځي همدومره مو په نېکيو کي زياتوالی راځئ (سنت حبيب بحواله جامع صغير).

* * * * *



ډاکټر نثار احمد صمد

# د افغانستان د تأسیس میاشت کومه یوه ده؟

*****

دا معلومه او ثابته ده چي معاصر افغانستان په ۱۷۴۷ کي تأسیس سوی دئ، خو په کومه میاشت کي؟ ډېر تاریخي آثار ښیي چي افغانستان د ۱۷۴۷ په اکتوبر (مېزان) کي تشکیل سوی دئ. مګر لږ منابع وایي چي یا، د افغانستان د رسمي اعلان میاشت د ۱۷۴۷ د جولای دوهمه نیمایي ده چي د اسد د میاشتي د لومړي لسیزي سره سمون لري، او زه شخصاً هم په دې نظر یم.

خو که یو شمېر مهمو او مشهورو تاریخي آثارو ته مراجعه وکړو، نو و به ګورو چي د افغانستان د تأسیس د میاشتي په ارتباط درې عمده روایتونه شته دي. البته ټولو آثارو د احمد شاه بابا د پاچا کېدو میاشت ښودلې ده چي موږ هم ځکه غواړو هماغه میاشت د معاصر افغانستان د تأسیس نېټه وبولو چي د ملت «لویي جرګې» په یوه خوله او یوه رایه او یوه فیصله سره دا کار وکړ. دغه درې

روایتونه په دې ډول دي:

۱. ډېر تاریخي کتابونه د شیرسرخ د لويي جرګې او د احمدشاه بابا د پاچا کېدو میاشت اکتوبر (مېزان) بولي. خو تقریباً هر اثر دا انګېرنه یو له بل نه پور کړې ده.

۲. د ځینو تاریخ پوهانو له بیانه داسي ښکاري چي احمدشاه بابا ته په جولای کي لا د خپل هغه ځلور زره کسیز پوځ د قومندانانو له خوا د لاري پر اوږدو بیعت سوی وو چي د ده سره په خراسان کي د نادرافشار تر وژل کېدو وروسته کندهار ته را روان وو. هغوی ادعا کوي چي لویي جرګې وروسته دا کار په اکتوبر کي پسي تائید او تصویب کړ. البته دا ادعا مستنده نه بلکي پر ګومان ولاړه ده چي ابوالحسن ګلستانه او صدیق فرهنګ یې مبلغین دي.

۳. لږ آثار په دې رایه دي چي احمدشاه بابا په جولای کي د شیرسرخ د لويي جرګې پر مهال پاچا سو. یعني دا چي نوموړې لویه جرګه اصلاً په جولای (یعني اسد) کي دایر سوې ده، نه په اکتوبر (یعني میزان) کي.

ښه به دا وي چي په خپله یې د احمدشاه بابا د رسمي مؤرخ له یو روایته راپیل کړو: محمود الحسیني چي د احمدشاه بابا په دربار کي د منشي دنده لرله او بیا د دربار د رسمي مؤرخ په توګه وټاکل سو، د اعلیحضرت سره په ټولو سفرونو، سوقیاتو او جګړو کي ملګری وو. الحسیني د احمدشاه بابا تر قیادت لاندي د هري ورځي ټول واقعات او جریانات لیکل چي خپل دا اثر ئې د «احمد شاهي تاریخ» په نوم سره تدوین او تألیف کړ. الحسیني د خپل دغه کتاب په لومړي ټوک ۱۷ – ۱۸ مخونو کي داسي لیکي:

«انحضرت که از قدیم الایام بزرگی و اختیار ایل جلیل درانی را از اباً و اجداد بزرگوار بمیراث یادگار داشتند کی اطاعت غیر را بر خود گوارا میکردند؟ تمامی خوانین عظام و رؤسا و سرکردگان والا مقام بعد از مصلحت و کنگاوش از خواص و عوام به جمعیت و ازدحام تمام وارد درگاه سپهر احتشام گردیده متفق اللفظ و الکلمه استدعای جلوس میمنت مأنوس اقدس بر اورنگ سلطنت موروثی نمودند. هر چند طبع بلند و همت اسمان پیوند انحضرت که همای همایون بال سعادت دو جهانی را در شکارگاه فقر و درویشی صید دام گوشه نشینی و عزلت اندیشی خود ساخته بود از قبول مستدعیات ایشان ابا و استنکاف فرمود، فایده یی بر ان مرتب نگردید، و ایستادگی و اصرار آن جماعت از حد گذشت. معهذا درویش عاقبت اندیش تجرد کیشی موسوم به درویش صابر از بدو حال نظر به ملاحظه انوار عظمت و دولت و کامرانی و اقبال از ناصیه احوال فرخنده مال از خدیو بیهمال همیشه مانند نصرت و اقبال ملازم رکاب هلال مثال، و پیش از وقوع قضیه قتل نادر شاه به الهام ملهمان غیبی عرض کرده بود که شادروان

قصر دولت خدیو سکندر منزلت وقتی بر سر پا خواهد شد که سراپا دولت نادری سرنگون شود، و در آن روز انحضرت را به این نوید سراسر امید بشارت داده، همه جا در موکب همایون حاضر و ناظر میبود، در آن روز از میان فرق سر کردگان ظاهر گردیده، در اثنای استدعا و التماس مردم، و ابا و استنکاف خدیو جهان ستان گیاه سبزی به دست گرفته، بجای جلیقه بر گوشه کلاه انحضرت استوار ساخته این خطاب مستطاب را تکرار نمود، نظم:

کای قبای پادشاهی راست بر بالای تو
تاج شاهی را فروغ از لـؤ لـؤ لالای تو
آفتاب فـتح را هر دم فروغی مـیدهد
در کلاه خسروی رخسار مه سیمای تو»

په پورتني مهم او تاريخي سند کې مؤلف چې د احمد شاه بابا د دربار د پېښو ليکونکی وو، ادعا کوي چې د لويي جرګې مشرانو د احمدخان څخه وغوښته چې د خپلې ميراثي لوړې کورنۍ په تقليد چې ټول حاکمان او واليان تير سوي ول، دغه پاچهي قبوله کړې خو احمدخان د دوی غوښتنه نه منله څو چې صابرشاه ملنګ په خپله اراده او فيصله سره مداخله وکړه، يو شين بوټی ئې راوړ او د احمدخان په خولۍ کې ئې نصب کړ.

د دې بيان څخه پنځه مهم ټکي په لاس راځي:

۱. په دې روايت کې ځکه بايد څه ناڅه مبالغه او مدح شامله وی چې هغه د احمدشاه بابا د پاچهۍ پر مهال د دربار د رسمي مؤرخ د قلم محصول دئ.

۲. روايت دا ادعا کوي چې ټولو قومي مشرانو او مخورو د احمدخان څخه په ټينګار سره وغوښته چې دغه (موروثي) پاچهي قبوله کړې خو احمدخان د خپل لوړ همت او مېړانې سره سره د پاچا کېدو څخه انکار کاوه. دا ادعا ځکه د تأمل وړ ده چې تقريباً ټولو تاريخي اسنادو څرګنده کړې چې مخورو د خپلو ځانو لپاره پاچهي غوښته او همدا علت وو چې جرګې نهه ورځې دوام وکړ څو چې بالاخره صابر شاه د احمدخان په ګټه مداخله وکړه.

۳. دا روايت څرګندوي چې صابرشاه د پخوا څخه د احمدخان سره پېژندل او هره خوا به ئې د سفر ملګری وو.

۴. روايت دا ادعا هم کوي چې صابرشاه حتی د نادر افشار د ژوندون پر مهال لا احمدخان ته د نادر د ځای ناستي په توګه د پاچا کېدو پېش بيني کړې وه.

۵. روايت څرګندوي چې صابرشاه يو شين بوټی (ګياه) راوړ او د احمدخان په خولۍ کې ئې ورنصب کړ. دا څرګندوَنه بل اثر نه ده تائيد کړې بلکې ټول تاريخي مدارک وايي چې هغه د غنمو وږی وو، نه شين بوټی، او

هغه ئې د احمد خان په بګړۍ کې
وتومبی نه په خولۍ کې.

په هر حال، د دې مبحث اصلي مقصد د احمدشاه بابا د پاچا کېدو نېټه ده چې هغه د ۱۷۴۷ کال کومه میاشت ده. ځکه، هماغه میاشت اصلاً د معاصر افغانستان د تأسیس او تشکیل نېټه هم ده چې سپړنه او لټونه ئې ضروري ښکاري. په دې اړه، لکه مخکې چې وښودل سوه، بېلابېل روایتونه شته دي. خو یو څه چې ډېر واضح او ثابت دي هغه دا چې د پېښو بهیر دا راښیي چې دغه کار د نادر افشار تر وژل کېدو ډېر ژر وروسته سوی دئ. احمدخان د نادر د وژنې سره سم د خپل ټول افغاني پوځ سره مخ پر کندهار را وخوځېد. د دې لپاره چې څه ځنډ پېښ نه سي نو د مشهد څخه د هرات د لارې پر ځای د فراه د فرعي لارې څخه کندهار ته راورسېد. نادر افشار د ۱۱۶۰ هجري قمري کال د څلورمي خور پر یوولسمه د یکشنبې په شپه (د ۱۷۴۷ د جون د نهمي او لسمي تر منځ شپه) د مشهد په مضافاتو کې (خبوشان) ته نژدې ووژل سو. احمدشاه بابا د ګنډا سنګهـ د (احمد شاه درانی) نومي کتاب د ۲۱ مي صفحې له مخې د جولای پر ۱۵مه محمدحسین اپریدي ته د ځان د پاچا کېدو خبر ورکوي. په دې حساب د (خبوشان) څخه تر کندهار پورې د احمدخان او د هغه د پوځ له خوا څه باندي یو زر کیلومتره واټن طی کول او بیا دلته پاچا کېدل ټول تقریباً پنځه اونۍ په بر کې نیسي او دا څه ناشونی کار نه بلکې د وطن د برخلیک او د ملت د خلاصون په تکل کې دا ګړندی سفر یوه عادي خبره ده.

پوهاند علامه رشاد د احمد شاه بابا د پاچا کېدو یعني د معاصر افغانستان د تأسیس نېټه داسې راښیي: "... احمد شاه بابا ... د ۱۱۶۰ هجری قمری کال د رجب د میاشتې تر اتلسمي، د ۱۷۴۷ عیسوي کال د جولای تر ۱۵ ... څو ورځې پخوا د کندهار په شیرسرخ کې پر تخت کښېنستلی او له هغې ورځې څخه ئې د پاچهۍ خطاب موندلی دی" (احمد شاهی شاهنامه: ۴۹۸ - ۴۹۹ مخونه).

مغفور او مرحوم علامه رشاد حق په جانب دئ او زه د هغه ستر شخصیت د شاګردانو شاګرد هم له پخوا څخه په همدې نظر یم. یعني دا چې د معاصر افغانستان د تأسیس میاشت جولای (اسد) ده. ځکه: ټول تاریخي آثار او پوهان په دې نظر دي چې د احمدشاه بابا پاچا کېدنه یو تاریخي ضرورت وو. هغه په دې مانا چې دا د روښانیانو، ختکو، یوسفزیو ... او هوتکو د راروانې آزادۍ غوښتونکې مبارزې عملي تحقق، او د محلي پوځ کښېیو او خپل منځي قبایلي سیالیو او دښمنیو څخه د ولس د خلاصون خواب وو، نه دا چې هغه ګواکې یوه تصادفي او ناڅاپي پېښه وه. موږ ټوله افغانان هم سل په سلو کې په همدې نظر او عقیده یو. ښه، چې داسې ده نو اوس به درې هغه عمده استدلالونه چې دا میاشت اسد ګڼي، مختصراً داسې عرض کړم:

۱ - موږ وایو چې د نومو ړي افغاني

دولت د جوړښت او اعلان لپاره کورني او بهرني شرایط بالکل آماده سوي ول چي په نتیجه کي ئې احمد شاه بابا د پاچا په حیث انتخاب او هېواد د افغانستان په نوم اعلان کړه سو. نو چي داسي ده او موږ ټوله افغانان په همدې عقیده یو، نو نادر افشار خو د ۱۷۴۷ د جون په نهمه/لسمه شپه ووژل سو (چي د ۱۱۲۶ لمریز کال د جوزا وروستی لسیزه کېږي) احمد خان ابدالي بې له ځنډه د خپل څلور زره کسیز افغاني پوځ سره مخ پر کندهار وخوځېد. دا ځکه چي خپل پلرنی ټاټوبی ئې باید د پردیو له تېري څخه په امن کړی وای، د هغه خپلواکي او حاکمیت ئې ساتلی وای او د یو دیموکراتیک مرکزي او سیاسي دولت جوړښت ئې اعلان کړی او بالاخره د ایران څخه ئې د افغاني پوځ سالمه را ایستنه ډاډمنه کړې وای. نو په دغسي نازک او خطرناک حالت کي چي د ملت د برخلیک د ټاکلو په نېک اقدام کي څومره ځنډ پیښېدی هغومره ملي ګټي د زیان آن خطر سره مخامخ کېدې. احمد خان ابدالي د خپل دغه لوی او پیاوړي پوځ سره د جولای په لومړۍ لسیزه (یا د سرطان په اواسطو) کي کندهار ته ورسېد، په داسي حال کي چي استازي ئې مخکي لا رارسېدلي او د یوې لویې جرګې د جوړېدو وړاندیز سوی وو. نو چي داسي ده، پس درې نورې میاشتي ولي دا ټول کارونه ځنډېږي او ګواکي دا چي نوموړې جرګه ولي د اکتوبر په وروستۍ لسیزه کي دایرېږي؟ فلهذا دا جرګه په اکتوبر (یا د مېزان په وروستیو) کي نه بلکي په جولای (یا د اسد په لومړۍ لسیزه) کي جوړه سوې ده. ځکه چي د ملت د مرګ او ژوند یا سرنوشت ټاکلو حساسه مسأله وه، څومره چي ځنډېده، هغومره ئې د اضمحلال او چاودېدو خطر موجود وو.

۲- دا چي ځینو تاریخي آثارو په دې اړوند د مېزان یا اکتوبر میاشت ښودلې ده، بې له شکه ئې د خپل عصر پر اسنادو، مدارکو او نقل قولونو تکیه کړې ده. خو د هندي مؤرخ ګنډاسنګهـ نامتو اثر (احمدشاه درانی) چي په ۱۹۵۹ کي په لندن کي خپور سوی او بیا په کابل کي په پښتو هم ژباړل سوی، یو نوی سند وړاندي کوي. په دې سند کي دغه میاشت اسد یا جولای ښودل سوې ده. د ګنډاسنګهـ د روایت له مخي انندرام مخلص چي د احمد شاه بابا همعصره دئ، په خپله تذکره کي محمد حسین اېرېدي ته د احمدشاه بابا یو لېږل سوی لیک رانقلوي. په دې لیک کي هغه محمدحسین په خپل پاچا کېدو باندي خبروي. د دې لیک نېټه د ۱۱۶۰ هجري قمري کال د رجب اتلسمه (یعني د ۱۷۴۷ د جولای پنځلسمه) ده. اوس نو، ښه به دا وي چي دا وروستی مدرک مؤثق وبولو، ځکه هغه دئ احمد شاه بابا په خپله د ځان د پاچا کېدو میاشت اسد یا جولای ګڼي. او که بالفرض دا څرګ نه منو. نو په هغه صورت کي د میزان یا اکتوبر میاشت هم تر سوال لاندي راځي او دا مسأله نوره پلټنه غواړي.

۳ - اوس به یو ډېر حساس او باریک دلیل ته راسم، او هغه دا چي: موږ او تاسي ټول په دې عقیده یو او همدارنګه هر تاریخي اثر په تحقیق سره دا راته وایي چي د شیرسرخ د نهه ورځنۍ جرګې په پای کي صابر شاه د غونډۍ څخه بهر ووت او د غنمو وږي ئې راوړل او د تاج په ډول ئې د احمدخان ابدالي په بګړۍ کي وتړل. ښه، چي داسي ده او موږ ټوله په همدې ګروهه یو، نو زما استدلال دا دئ چي په کندهار کي د غنمو (لو) یا (رېبل) د جوزا په دوهمه نیمایي او د سرطان په لومړۍ نیمایي (یعني د جولای په میاشت) کي تر سره کېږي، نه د میزان په وروستیو یعني اکتوبر کي. د غنمو دا وږي د مېزان په میاشت کي (چي لو بشپړ سوی، رشه اخیستل سوې، منی شروع او د انارو موسم پیلېدونکی وي) چیري د صابر شاه ملنګ په انتظار کي لا بیا هم ولاړ ول تر څو هغه یې وشکوي او په تلوار ئې محضر ته راوځغلوي؟! او دا به هم د موسم سره بې انصافي وي که ادعا وسي چي ګواکي هغه وخت به د کندهار غنم د مېزان په وروستیو کي لا هم شنه ولاړ ول! نه داسي نه ده. نه هماغه وخت او نه هم اوس د کندهار غنم هیڅکله د مېزان په وروستیو یا د اکتوبر په نیمایي کي حتی هیڅ وجود هم نه لري. ځکه تر رېبلو وروسته فصل ټولېږي او پر ځای ئې بې له ځنډه بل موسمي کښت صورت نیسي.

او که بالفرض ادعا وسي چي ښایي د لویي جرګې پر مهال به صابر شاه ته د غنمو یو وچ وږی په لاس ورغلی وي، نو دغسي ادعا به د دې درنې لویي جرګې لپاره یو سپکاوی وي چي کوم وچ او په خاورو لړلی وږی د یو معزز او نوي پاچا په سر کي نصب کړه سي او که وویل سي چي ممکن صابر شاه به څو وچ وږي ساتلي ول، دغسي ادعا هم د صابر شاه غونډي سیاسي ملنګ د کرکټر او طرزالعمل سره اړخ نه لګوي او په دې هکله هیڅ کوم سند یا روایت وجود نه لري.

یو ځل بیا د پوهاند رشاد بابا رایه رانقلوم چي د (حیات افغاني) د ۹۰ صفحې په لمن لیکه کي ئې څرګنده کړې ده: "لوی احمد شاه بابا د (۱۷۴۷) عیسوي کال د جولای د ۱۵ دمخه پاچا سوی دی، یعني د دغه کال تر اکتوبر درې میاشتي دمخه پاچهي ته رسېدلی دی".

ښایي بې ځایه به نه وي چي د پوهاند رشاد بابا سره په دې ارتباط زما یوه مهمه خاطره رانقل کړم: زه د ۱۹۸۸ څخه د ۱۹۹۹ کال تر پایه په ډیلي کي اوسېدم او په ۱۹۹۷ کي یو ځل افغانستان ته ولاړم. هلته څو واره د علامه رشاد بابا په حضور مشرف سوم. یوه ورځ ئې د خبرو پر مهال د افغانستان د تأسیس میاشت راڅخه وپوښتله او ما په ډېره عاجزۍ او بې جرئتۍ سره همدا ورته وویل چي که ناراضه کېږئ نه، نو زما حقیر له نظره هغه اکتوبر نه بلکي جولای ده. دا مهال علامه رشاد بې له ځنډه په حاضر جوابۍ سره راڅخه وپوښتل چي ولي دي د (که ناراضه کېږئ نه) ګوزار را باندي وکړ؟ زه ډېر کم

راغلم او سرخوږی سوم. خو هغه ستر شخصیت را ولاړ سو او په غیږ کي ئې ټینګ ونیولم او راته وئې فرمایل چي "ته لومړی ځوان یې چي دغسی جرئت مندانه جواب دي راکړ او ښخي دي زما د زړه خبره وکړه". او زیاته ئې کړه چي ته د مولوي سرور واصف په اولاده کي یوازینی نفر یې چي د هغه پر لار روان یې او د هغه حق ادا کوې، او وروسته ئې د مجلس په اوږدو کي راته وویل چي ولي دغه مطلب خپرونو ته نه ورکوې؟ ما هم وعده ورسره وکړه، خو کله چي بیرته هند ته ولاړم نو د هماغه کال په نوامبر کي د جرمنی په کولن کي (د اوسني افغانستان د جوړېدو د دوه سوه پنځوسمي کالیزي) په ویاړ یو کنفرانس رابلل سوی وو چي ښاغلي زرین انځور ما ته هم په هغه کي د لیکني بلنه راکړې وه او ما هم د علامه رشاد صاحب هدایت او نصیحت پر ځای کړ او ده ته مي کابل ته په دې اړه یو اطمینانی خط هم ورولېږی. هو، د علامه رشاد بابا د لطف او پېرزویني یاد دي تلپاته او د افغانستان د جوړښت میاشت یعني جولای دې تلپاده وي.

*****

**اخځونه:**


۱. تاریخ احمد شاهی، مؤلف: محمود الحسینی المنشی، جنوري ۲۰۰۱، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور.
۲. احمد شاهي شاهنامه، ناظم: حافظ مرغزی، پېژندنه او تعلیقات: علامه اکاډیمیسن پوهاند عبدالشکور رشاد، ۱۳۸۷لمریز، کندهار.
۳. حیات افغاني، لیکوال: محمد حیات خان، ژباړونکي: محقق فرهاد ظریفي او محقق عبدالطیف یاد طالبي. سریزه، تحشیه او تعلیقات: اکاډیمیسن عبدالشکور رشاد، ۲۰۰۷، دانش خپرندویه ټولنه، پېښور.
۴. اوسنی افغانستان د خپل جوړښت په بهیر کي (د مقالو مجموعه). افغانی کلتوري ټولنه کولن (جرمنی)، ۱۹۸۸، پېښور.
۵. مجمع التواریخ نادری، مؤلف: ابوالحسن ګلستانه، تهران، ۱۳۲۰شمسي.
٦. افغانستان در پنج قرن اخیر، مؤلف: میر محمد صدیق فرهنګ، مشهد، ۱۳۷۱شمسي.
۷. د درانیانو امپراتوري، لیکوال: یو. و. ګانکوفسکي، مترجم: پوهندوی دوکتور ګل محمد نورزی، کابل، ۱۳۵۹لمریز.
۸. احمد شاه درانی، لیکوال: ګنداسنګ، لندن، ۱۹۵۹.


*****

* عبدالقدیم پتیال

# نثلی لیکوال

(د مرحوم استاد نوري ژوند او آثارو ته کتنه)

لومړۍ برخه

*****

### سریزه

**پښتو فوکلور ته د طلوع افغان او ادبي انجمن توجه او په هغه کي د استاد نوري ونډه:**

د یوې ژبې په تحریري ادبیاتو کي د شفاهي ادبیاتو ونډه او حصه ډېره مهمه ده او هغه لیکلي ادبیات به کاملاً نیمګړي وي، چي په هغو کي د شفاهي ادبیاتو ذکر موجود نه وي او یا د شفاهي ادب ارزښت ته په سپکه کتل سوي وي.

دا ډېره پر ځای خبره ده، چي په معاصرو نړیوالو تعبیرونو کي هغه آثار او تخلیقات د ادبیاتو په ساحه کي معرفي کېږي، چي هنري ارزښتونه ولري، خو دا چي په شفاهي ادبیاتو کي د ټولني خاصه څېره منعکسه سوې ده او د تاریخي مناسباتو او اجتماعي تعاملاتو د پېژندني په برخه کي تر هر څه لومړۍ، کېدای سي، چي په شفاهي ادبیاتو کي ډېر څه تر لاسه سي، ځکه نو په دغه حصه کي د ولسي ادب سهم د هېري څپو ته ور غورځول کېدای نه سي.

زموږ به دا توقع ډېره بېځایه وي، چي له شفاهي ادبیاتو څخه هغه تمه وکړو، چي له لیکلو او تحریري ادبیاتو څخه یې لرو، ځکه تحریري ادبیات د داسي کسانو لخوا را منځته سوي دي، چي معلوم دي او د تصفیې تر کارخانې را وتلي دي او شفاهي ادب د ولس له منځه را وتلی دئ او ویونکي یې معلوم نه دي، خو دا چي لاس په وهل سوی نه وي، صیقل سوی نه وي، دوړي او خاوري ځني پاکي سوي نه وي او خیري یې پرېولل سوي نه وي، نو دا د دې معنا نه لري، چي ګواکي د (نفي) په رنګ دي ووهل سي، بلکي که چېري لاس په ووهل سي او علماً توجه ورته وسي، نو د ژوند د ټولو مناسباتو او حالاتو یوه روښه هینداره به ځني جوړه سي.



خاص ځای لري. د دغي ژبي زيات ويونکي له پخوا څخه د زدکړي او سواد له نعمت څخه محروم پاته سوي دي او په دغسي حالت کي نو طبيعي خبره ده، چي د ليکلو ادبياتو پر ځای د شفاهي ادبياتو د ودي، ايجاد او پرمختګ عوامل ډېروي.

دغه ډول ادبيات په پښتني سيمو کي له ډېرو پخوانيو زمانو څخه را منځته سوي دي او د ولس لخوا په خورا مينه پالل سوي دي. مګر د دغه ادبياتو د نمونو او بولګو د ثبت کار تقريباً وروسته را پيل سوی دئ.

په افغانستان کي د شفاهي ادبياتو او فوکلوريکو موادو د ثبت او ټولوني کار په شلمه پېړۍ کي را شرو کېږي او د نباغلي سرمحقق زلمي هېوادمل په قول، چي په افغاني پوهانو کي اروانباد غلام محی الدين افغان (۱۳۰۰ هـ ش مړ) دا کار

د پښتو ژبي شفاهي ادبيات خورا غني دي، خو دا چي په سيستماتيکه توګه تر يوې علمي څېړني لاندي نيول سوي نه دي او تر يوه ځايه پوري يې په تحريري ادبياتو کي يې ونډه له پامه غورځول سوې ده، نو په دې معنا نه، چي ګويا دغه برخه کمزورې او نېستمنه ده، بلکي پښتو ژبه د شفاهي ادبياتو د بې شمېره موادو د درلودلو له وجي د نورو ژبو په کتار کي يو

تر هر چا دمخه کړې دئ او په سراج الاخبار افغانیه کي یې د پښتو متلونو نمونې چاپ کړې دي[1].

تر مرحوم افغان وروسته په کندهار کي د فوکلوریکو مواد ثبت او ټولوني ته خاصه پاملرنه سوې ده، چي په هغه کي اروانښاد استاد محمدګل نوري تر هر چا وړاندي دئ او د شفاهي ادبیاتو ډېري نمونې یې ثبت او خوندي کړي دي.

استاد محمد ګل نوري د افغانستان یو پیاوړی او مخکښ فوکلوریسټ بلل کېږي او د پښتو شفاهي ادبیاتو او فوکلوریکو موادو د ټولوني په برخه کي د دوی کارونه تر بل هر چا ډېر، پاخه او په زړه پوري دي، ځکه نو بده به نه وي، چي دلته د مرحوم نوري د کار پر پیل او د دغه کار (فوکلور) پر شرو او تاریخي سیر یوه لنډه رڼا واچوو.

په دغه کوچنۍ سریزه کي په خاص ډول د ادبي انجمن، پښتو مجلې او طلوع افغان پر هغو اساسي کارو رڼا غېږو، چي د فوکلور په ساحو کي یې تر سره کړي دي او ضمناً په هغه کي د استاد نوري پر ونډې هم یو لنډ کې بحث لرو:

لکه مخکي چي مو ذکر کړل، د پښتني فوکلور او شفاهي ادبیاتو اهمیت او ارزښت ته د شلمي پېړۍ په جریان کي پښتنو څه نا څه پاملرنه وکړه. په دغه برخه کي د کابل د ادبي انجمن او د کندهار د ادبي انجمن (۱۳۱۱ هـ ش تاسیس) ونډه د خاصي پاملرني وړ ده، خصوصاً د کندهار ادبي انجمن تر بل هر ادبي حرکت او علمي خوځښت په دغه برخه کي پېش قدمه دئ. که څه هم په (۱۳۱۶ هـ ش) کي په کابل کي پښتو ټولني په کار پیل وکړ، نو یې د دې ټولني د مرامنامې په دریمه ماده کي د پښتني فوکلور او پښتو شفاهي توکو ټولولو ته ځای ورکړ، خو تردې مخکي د کندهار په ادبي انجمن کي د فوکلوریکو اثارو د را ټولولو او شفاهي موادو د ثبتولو بهېر جریان لاره، چي په (پښتو) مجله او (طلوع افغان) کي راغلي مقالې او لیکني زموږ د دغي خبري شاهدي ورکوي.

کله چي په (۱۳۰۰ هـ ش) کي په کندهار کي د اروانښاد مولوي صالح محمد کندهاري (۱۳۳۹ هـ ش مړ) په لاس طلوع افغان تاسیس سو، نو په لومړي سر کي یې په پارسو او پښتو دواړو نشرات کول، چي بیا په (۱۳۱۰ هـ ش) کي د لوی استاد حضرت علامه حبیبي (۱۳۶۳ هـ ش مړ) لخوا ټول اخبار پښتو ته واړول سو، چي په دې ډول په هېواد کي د لومړني پښتو اخبار تاداو کښېښوول سو[2].

په دغه وخت کي د لوی استاد علامه حبیبي رحمه الله علیه له خوا د طلوع افغان له لاري

---

[1] (وګ: د پښتو ادبیاتو تاریخ (لرغوني او منځنۍ دورې)، د سرمحقق زلمي هېوادمل، ۳ مخ. ۱۳۷۹ ش. د پېښور چاپ).

[2] (د زیاتو معلوماتو لپاره وګ: درنه کورنۍ. د استاد محمدمعصوم هوتک. ۸۲ مخ. ۱۳۸۲ ل چاپ).

ځیني علمي، ادبي او تاریخي مضامین او رسالې خپرې سوې، چي د پښتو ژبې او ادب د پیاوړتیا او احیا لپاره یې ډېر کار وکړ او د ادبي تاریخلیکني، متن څېړني، تذکره لیکني او ژبپوهني په برخو کي په اساسي توګه څېړني د (تاریخچهٔ شعر پښتو) او د ځینو تحقیقي مقالو او رسالو خپرول د علامه حبیبي رحمه الله له خوا را پیل کېږي، چي دغه ټوله د طلوع افغان ورځپاڼې له لاري نشر سوي دي، چي په دغه وخت کي د دې تر څنګ د پښتو فوکلور او شفاهي زېرمو د خوندي کولو او ثبتولو کار هم په اساسي توګه په طلوع افغان کي را شرو سو، چي په دغه ساحه کي د ځینو لیکوالو تر څنګ اروانباد استاد نوري تر بل هر چا ډېره ونډه لرله او په دغه خصوص کي د دوی ځیني مقالې، رسالې او مضامین د پښتو فوکلور د ثبتوني او ټولوني په برخه کي اساسي او پاخه کاروته ګڼل کېږي.

کله چي په کندهار کي د پښتو ادبي انجمن تاسیس سو (۱۳۱۱ هـ ش)، نو د دې انجمن په افتتاحیه وینا کي، چي مرحوم محمدګل خان مومند کوله، په اوو بېلو - بېلو مادو کي د ادبي انجمن دندې په دې ډول وښوول سوې:

- د یوې خپروني انتشار
- د پښتو د متفرقه لغاتو تدوین او ټولول
- د پښتو مطبوع او غیر مطبوع ادبي کتابونو ټولول
- د درسي کتابونو ترجمه
- د پښتو د یوې ملي کتابخانې تاسیس
- د (ادبي مجلې) د نشر په واسطه سره د ټول ملت توجه جلبول[۳].

**د ادبي انجمن غړي دغه کسان ول:**

مولوي عبدالخالق خان واسعي، محمد اعظم ایازی، حاجي عطامحمد خان، ملا بهاالدین اسحق زی، حاجي عبدالغفور خان خروټی، مولوي قیام الدین خادم، محمد ګل خان لګیا (بیا نوري)[۴] عبدالغفور خان شرر او محمد نسیم نوري. د دغه انجمن رئیس محمد عثمان پښتون و[۵].

دغو کسانو د (پښتو) مجلې لخوا، چي د دغه انجمن له لوري خپرېدله، د پښتو ژبې او ادب او فوکلور په ساحه کي مختلفي مقالې او لیکني خپرې کړې، چي په هغه کي د پښتو ژبې د فوکلوریکو موادو د ټولوني او ثبتوني جریان هم د هېرې نه دئ. په دغه مجله کي د ادبیاتو په ساحه کي د (ادبیات) تر عنوان لاندي اروانباد مولوي صالح محمد کندهاري د پښتو شعر پر څو بېلو - بېلو خواوو خبري او تبصرې کړي دي. چي دا سرلیک د (پښتو) په زیاتو ګڼو کي سته او د ادب پر

[۳] (وګ: ژبپالنه. لومړی ټوک. د استاد حبیب الله رفیع. ۹۲ مخ. ۱۳۶۱ ش - کابل).

[۴] استاد نوري څه وخت وروسته په رسمي توګه د دغه انجمن غړی سو. خو قلمي همکاري یې له هماغه اول سره لا ور سره درلوده. (پټیال).

[۵] وګ: ژبپالنه، لومړی ټوک. ۹۳ - ۹۴ مخونه.

مختلفو برخو لیکنې سوې دي، دغه راز د تاریخ په برخه کې د لوی استاد حضرت علامه حبیبي رحمة الله علیه ځینې تحقیقي مقالې، د اجتماعیاتو په اړه د مولوي عبدالخالق خان واسعي سلسله واره مقالې، د علمي او ساینسي تیوریو په باب ځینې تحقیقاتي مقالې، د اسلامي تاریخ په باب د دغه انجمن د ځینو غړو لیکنې او د (ادبي څېړې) تر عنوان لاندې د اروابناد استاد نوري سلسله واره مقالې د خاصې یادونې وړ دي.

دا چې د پښتو ادبي انجمن په چوکاټ کې د فوکلور برخې ته خاصه توجه سوې ده، ځکه نو د دغه انجمن د نشراتي ارګان (پښتو) مجلې په ډېرو ګڼو کې په دغه اړه لیکنې او مقالې خپرې سوې دي، چې د فوکلور ټولونې دغه کار ته د ادبي انجمن ټولو غړو خاصه توجه کوله او په پښتو مجله کې د (اولسي پانګه - فوکلور) تر سرلیک لاندې د (متلونو) ټولولو او ثبتولو ته کار سوی دئ. په دغه برخه کې اروابناد نوري له پښتو فوکلور سره د خاصې علاقې او ذوق پر اساس د شفاهي اثارو را ټولولو ته ډېر کار کړی دئ او د پښتو مجلې او طلوع افغان په مختلفو ګڼو کې د دوی زیاتره مقالې پر دغه محور را څرخي، چې په دې تواګه موږ ویلای سو، چې اروابناد نوري له (پښتو) او (طلوع افغان) څخه د شفاهي ادبیاتو او فوکلوري توکو د را ټولولو او ثبتولو لړۍ را ننبلولې ده، چې بیا یې په ترتیب سره د پښتو ټولنې او مختلفو پښتو نشراتو له لارې دغې برخې ته په نه ستړې کېدونکې توګه کار کړی دئ او ځانته یې یو خاص مقام حاصل کړی دئ.

سرمحقق زلمی هېوادمل د استاد نوري د کارونو په اړه وایي، چې: د افغانستان د ځینو فرهنګي ټولنو، لکه: د کندهار ادبي انجمن، د کابل ادبي انجمن د غړیو له خوا چې د فوکلور ټولونې او فوکلور پوهنې په اړه کوم کارونه شوي دي، د فولکور ټولونې هغې یې (په زیاته د اروابناد محمدګل نوري (۱۳۲۰ هـ ق - ۱۳۹۳ هـ ق) کارونه د زیاتي مننې او یادونې وړ دي[6].

په (پښتو) مجله او (طلوع افغان) کې د فوکلور په ساحه کې د مرحوم نوري کارونه د پښتو فوکلوریکو موادو د را ټولونې لومړني، خو اساسي قدمونه ګڼل کېږي، چې د استاد نوري دغو کارونو د پښتنو په نورو حوزو کې فوکلور ټولوونکو ته الهام ورکړ او د شفاهي موادو د ثبت پروسې چټکتیا ومونده.

موږ چې کله د پښتو فوکلور د پیاوړتیا پر تاریخي سیر بحث کوو، نو په هغه کې د کندهار د ادبي انجمن، پښتو مجلې او طلوع افغان هڅې هیڅکله له پامه غورځول کېدلای نه سي او په دغو حرکتونو کې د استاد نوري هغه اساسي او بنسټیز کارونه د خاص بحث وړ دي، چې د

---

[6] وګ: پښتو ولسي ادبیات، د سرمحقق زلمي هېوادمل، سریزه، ۸-۹ مخونه، ۱۳۷۶ ش چاپ - پېښور.

شفاهي ادبیاتو او فوکلوریکو توکو د ټولونې په عرصو کې یې په اکاډیمیکه توګه تر سره کړې دي.

استاد محمد ګل نوري په داسې وخت کې د فوکلور او ولسي ادب را غونډولو ته ملا وتړله، چې تر دې مخکې چا فوکلور نه پېژندی او د استاد رفیع په قول، چې فوکلوري ارزښتناکو پانګو ته به یې د (چټیاټو) نوم ورکاوه[۷].

د فوکلوریکو موادو د راټولونې د تاداو ډېره د ده په لاسو کښېښوول‌ سوه او په یوه سر یې د پښتني فوکلور په برخه کې د یوې اکاډیمۍ هومره کار کړی دئ.

زه دلته په دغه کوچنوټې رساله کې غواړم، چې دغو موضوعاتو ته په اجمالي توګه اشاره وکړم او وښیم، چې مرحوم نوري د فوکلور او شفاهي ادبیاتو په برخه کې کوم - کوم او څنګه - څنګه کارونه سر ته رسولي دي.

د یادونې وړ بولم، چې په دغه وړه کې رساله کې دمخه تر دې چې مستقیماً د استاد نوري کارونو او فعالیتونو ته ولاړ سو، د دوی پر ژوند، کورنۍ، دندو او اثارو هم یو کوچنی بحث لرو، چې ښاغلي لوستونکي یې لوستلو ته په ډېر ادب را بولم.

عبدالقدیم پتیال
نوی ښار - کندهار
۱۲ - حمل - ۱۳۸۸

[۷] وګ: د تللیو یاد، د استاد حبیب الله رفیع مقاله.

* * *

**د استاد نوري ژوندلیک:**

استاد محمد ګل نوري د مرحوم عبدالواحد صاحبزاده زوی، د غلام نبي صاحبزاده لمسی، د رحمت الله صاحبزاده کړوسی، د میر هزار صاحبزاده کوسی، د عبداللطیف صاحبزاده کودی[۱]، چې دغه عبداللطیف صاحبزاده بیا د بي بي فاطمې زوی او بي بي فاطمه د میا نورمحمد صاحب لور ده[۲].

[۱] (استاد نوري لیکي، چې: خلک او سپین ږیري وایي، چې د دې کتاب (زوړ کندهار - پتیال) د مؤلف کورنۍ د میا نورمحمد صاحب قدس سره العزیز لمسیان دي. هوکې زما پلار او نیکه او ور نیکه په صاحبزاده خېلو او د میاصاحب په لمسي توب سره معلوم او مشهور دي. منګر زما پلار، چې قریباً د سلو کالو سړی و، ما پوښتنه د خپلو نیکه ګانو د سلسلې څنې وکړه، نو ده راته وویل، چې زه عبدالواحد صاحبزاده، د غلام نبي صاحبزاده زوی او هغه د میر هزار نیکه زوی دئ، زیاته نه یم خبر، زیات تر دغه د پیرمحمد خان الکوزي مرحوم د خولې څخه وایي، چې هغه میر هزار نیکه د میرویس بابا او هغه د ملا لطیف نیکه زوی او هغه د حبیب الله صاحبزاده زوی و، چې د میا نورمحمد صاحب وراره کېدی، په هر صورت په یقین سره زه دغه نه سم ثابتولای، زموږ آخر نیکه میاصاحب و، منګر بیا هم د مېړو او سپین ږیرو د خولې ناري دي، د دوی خولې او افسانې د تاریخ د لیکلو سره ډېر کومک کوي، تر عدم معلومات همدغه مجهول معلومات هم ښه او غنیمت دي. (زوړ کندهار، د استاد نوري، د مقدمې ۷ مخ (ناچاپ).

[۲] میا نورمحمد نورزي رحمه الله علیه نارینه اولاد نه درلود او خپله لور (بي بي فاطمه) یې خپل وراره

استاد نوري په (۱۳۲۰ هـ ق - ۱۲۷۹ هـ ش) کال د کندهار د کارېزک د منارې په کلي زېږېدلی دئ[۳].

نوري د خپل وخت مروجه علوم لوستي ول او د ملايي درجې ته رسېدلی و، چي په دغه سلسله کي يې د کندهار د ارغنداو ولسوالۍ د ناګهان په کلي کي د وکيل ګلبدين خان الکوزي ملايي هم کړې ده.

مرحوم نوري په (۱۳۰۲ ش) کي د کندهار په شالمار ښوونځي[۴] کي د ښوونکي په توګه مقرر سو.

نوري د وخت مروج علوم، لکه: صرف، نحو، منطق، احاديث، اخلاق او دينيات ولوستل، په عربي او دري ادبياتو کي يې ښه معلومات تر لاسه کړل، عربي ژبه يې په ښه توګه زده کړه او هم يې په حساب او رياضي کي معلومات پيدا کړل.

کله چي په کندهار کي ادبي انجمن (۱۳۱۱ هـ ش) تاسيس سو، نوري يې له لومړنيو همکارانو څخه و او په (پښتو) مجله کي يې خپلې ليکني او اشعار خپاره کړي دي. کله چي په (۱۳۱۵ هـ ش) کي د کندهار ادبي انجمن کابل ته را ولېږدول سو، ښاغلی نوري هم ور سره راغلی او په (۱۳۱۶ هـ ش) کي د کندهار ادبي انجمن د کابل په ادبي انجمن کي له ادغامولو سره پښتو ټولنه جوړه سوه، نو محمد ګل نوري د پښتو ټولني غړی سو. تر دغه وخت ده خپل تخلص (لګيا) کاوه او پر دغه مهال يې (نوري) تخلص د ځان لپاره وټاکی.

په دغه وخت کي استاد نوري په کابل مجله او کابل کالنۍ کي خپلو ادبي

---

ملا عبداللطيف اخوند ته ورکړې وه، بيا چي کله د دوی زوی وزوکېدی، نو پر هغه يې هم د عبداللطيف نوم کښېښوو. دغه د نسب شجره ما (پټيال) ته د نوري مرحوم زوی نورالهادي نوري راکړې ده. د دې شجرې پر بشپړ ثقه والي زه څه ويلای نه سم، خو کله، چي مي د نوري مرحوم (زوړ کندهار) وليد، نو پر پورتنۍ شجرې مي د شکونو شمېر زيات سو، خو په هر صورت، موږ دې نتيجې ته رسېدلای سو، چي نوري مرحوم د مياصاحب له هغې اولادې څخه دئ، چي سلسله پر سلسله مستقيماً ده ته دغه د نسب لړۍ را رسېدلې ده.

[۳] د منارې کلی د ميا نورمحمد صاحب نورزيْ د اوسېدني او بيا په هغه ځای کي د ښخېدني له اسيته د (منارې) په نامه باندي مشهور سوی دئ. (وګ: ملي هينداره، د استاد هوتک د سريزې (ج) مخ.

[۴] (د مرحوم فاضل استاد حضرت علامه اکاډېميسن پوهاند علامه رشاد (رح) په مهم اثر (د کندهار يادا ښتونه) کي د (مکتب تجار) ذکر سوی دئ، چي په حاشيه کي د وضاحت لپاره استاد هوتک صاحب ورته کښلي دي، چي: مکتب تجار د کندهار لومړنی مکتب و، چي د سوداګرو په اعانه جوړ سو، ځکه يې (مکتب تجار) باله. د طلوع افغان په لومړۍ ګڼه کي له سوداګرو څخه د دغي اعانې له امله تشکر سوی دئ. د دغه مکتب ځای د سردار مهردل خان مشرقي شخصي کور و. دا کور په چار کوڅه کي واقع و او دا مکتب وروسته د شالمار او ورپسې د مشرقي په نامه نومول سوی دئ. (وګ: د کندهار يادښتونه. دوهم ټوک، ۲۳۷ مخ). لوی استاد حضرت علامه پوهاند حبيبي (رح) هم د دغه مکتب له لومړنيو زده کوونکو څخه و او په ۱۲۹۹ هـ ش کي په دغه مکتب کي شامل سوی دئ. علامه پوهاند رشاد (رح) هم څه وخت په دغه مکتب کي درس ويلی دئ).

او فوکلوري مقالې خپرولې او په (۱۳۱۷ هـ ش) کې یې د (ملي هنداري) لومړی ټوک خپور کړ او هم یې په (۱۳۱۸ هـ ش) کې (لیک ښوونکی - دوه ټوکه) خپور کړ.

په (۱۳۲۰ هـ ش) کې یې د (پښتو اصطلاحات او محاورې) خپرې سوې، په (۱۳۲۳ هـ ش) کال یې بل فوکلوري اثر (ملي سندري) خپور سو، چې پکښې پښتو لنډۍ، بابولالي او د اتڼ نارې خوندي دي. په (۱۳۲۵ هـ ش) کال د ښاغلي نوري د (ملي هينداري) دوهم ټوک خپور سو او (متلونه) نومی اثر یې په (۱۳۲۷هـش) کال کې نشر سو.

د ښاغلي نوري وروستی ماموریت د پښتو ټولني د لغاتو مدیریت و، چې د استاد رفیع په قول د ځینو مغرضینو د دسیسو په اثر له پښتو ټولني څخه وایستل سو او تقاعد سو.

**د استاد نوري کورنۍ:**

استاد محمد ګل نوري په یوې داسې روحاني او علمي کورنۍ پورې اړه لري. چې په کندهار کې به چنداني داسې څوک نه وي، چې هغه کورنۍ دي نه پېژني او د هغې روحاني کورنۍ مشر (میا نور محمد نورزي) ته دې احترام نه لري.

میا نورمحمد نورزی د کندهار هغه وتلی روحاني او علمي شخصیت دئ، چې کلونه - کلونه یې په کندهار کې د علم او عرفان ډېوه بله ساتلې وه او ډېر مریدان او شاګردان یې د طریقت او حقیقت په مزایاوو پوه کړي، روزلي او یوې روحاني مرتبې ته رسولي ول. د ده د کرامتونو کیسې تر اوسه هم د خلکو په خولو کې دي او هغه کلی، چې د ده په احترام د مناري) په نامه نومول سوی دئ. د ډېر درنښت او عزت وړ دئ.

میانورمحمد نورزي د لوی احمدشاه بابا (۱۱۸۶هـق د لومړی خور دریمه مړ) د سلطنت په زمانه کې ژوند کاوه. په کندهار کې په تقوی او زهد ډېر مشهور و او د لوی میاصاحب (میا عبدالحکیم کاکړ) له خلیفه ګانو څخه ګڼل کېدی[۵].

---

(۵) میا عبدالحکیم (رح) د میا سکندرشاه زوی و. چې د پښین په خالوزو کې په (۱۰۷۰ هـ ق) کې زېږېدلی دئ. میا صاحب مشهور په ناناجیو صاحب، چې په کندهار کې په (میا صاحب) شهرت لري. د شاه حسین هوتک (۱۱۴۵هـق) په زمانه کې د کندهار د خلکو لارښود او د میا فقیرالله له معاصرانو څخه و. میا فقیرالله حصارکي د ده په نامه څو لیکونه لري. چې دغه لیکونه عرفاني او تصوفي مسایل لري. د ده یوه رساله په دري ژبه د (مقالهٔ میا عبدالحکیم در بیان طریقهٔ تلقین) په نامه د کابل په ارشیف کې سته. د میا عبدالحکیم کاکړ مزار د بلوچستان د لورلایي په چوتیالی کې واقع دئ. د ده له تالیفاتو څخه په عقایدو کې (اختصار حسن الایمان) او په دري ژبه (مجموعهٔ رسایل طریقت و تصوف) او د (نسب نامهٔ غلجي) رساله سته. په کندهار کې د میشیخت د طریقو سلسله میا عبدالحکیم (رح) ته رسېږي. (وګ: د میا فقیرالله ژوندلیک، د لوی استاد حضرت پوهاند علامه حبیبي، ۳۷-۳۸ مخونه، ۱۳۵۹ش چاپ-کابل).

لوی میاصاحب په لورلایي، کندهار، ننګرهار، پېښور او لاهور کې د علم او عرفان ځانته حاصل

ده د میاعبدالحکیم صاحب دوولس کاله خدمت په ډېر اخلاص او صداقت سره وکړ. په فیوضاتو او د طریقت په ټولو مزایاوو یې ځان پوه کړ. میانورمحمد صاحب په طریقت کې ځیني اثار لري، چې مشهور یې (مقامات عالیه) دئ او پر دغه کتاب ملااحمد الکوزي د (تعلیم السلوک) په نامه یوه شرحه هم لیکلې ده[٦].

د میاصاحب د کورنۍ د ځینو غړو د روایت پر اساس، میا نورمحمد رحمه الله علیه له کدني څخه له میا عبدالحکیم کاکړ رحمه الله علیه سره یو ځای د کندهار زاړه ښار ته تللی دئ او هورې دواړه په یوه مسجد کې استېدل، چې وروسته میا نورمحمد رحمه الله علیه کوچني کاریزک ته ولاړی او هورې یې د عرفان او تصوف سلسله جاري کړه، چې په عین حال کې د میا عبدالحکیم (رح) خلیفه هم و.

میا نورمحمد نورزی په (۱۱۷۲ هـ ق) کې وفات سوی دئ او د کوچني کاریزک د کلي د څنګه په مناره کې ښخ دئ او د ده یوه خلیفه د پوټي میاصاحب[٧].

---

کړی دئ. په طریقت کې د سید لعل پاچا مرید و، چې هغه بیا د شیخ عبدالغفور نقشبندي مجددي قادري کشمیري پېښوری پیر و. (وګ: د کندهار مشاهیر، د محمدولي ځلمي تالیف، ۱۵۷ مخ. د رشاد خپرندویه ټولني لخوا، ۱۳۸۷ ش چاپ - کندهار). لوی میاصاحب ته چې کله د عرفان او خلیفه توب درجه حاصله سوه، نو کندهار ته راغلی او دلته یې په زرونو شاګردان او مریدان وروزل او د علم او عرفان ډېوه یې بله وساتله. په کندهار کې لوی میاصاحب ته ملي قاید حاجي میرویس خان نیکه (۱۱۲۷ هـ ق مړ) زیات احترام او ارادت لاره او ویل کېږي، چې کله - کله به یې میاصاحب خپل دربار ته د مجلس او صحبت لپاره راغوښت او کله - کله به میرویس نیکه د ده دربار او خانقاه ته ورته. (والله اعلم بالصواب). میاعبدالحکیم کاکړ (رح) په (۱۱۵۳ هـ ق) کال کې وفات سوی دئ.)

[٦] مولوي احمد الکوزی د کندهار د ډېرو علماوو استاد باله سي او د افغانستان دوو مشهورو عالمانو لکه علامه حبواخوند زاده (۱۲۱۳ - ۱۲٦۵ هـ ق) او ملا کته اخوند (د ده اصلي نوم ملا غلام محی الدین و، خو د سردار کهندل خان درباریانو د علم او تقوی له کبله ده ته دغه نوم ور کړی و، ملا صاحب په قام تره کی و) له مولوي احمد الکوزي څخه زدکړې کړې دي. د مولوي احمد صاحب الکوزي مشهور تالیفات دادي:

۱. تعلیم السلوک
۲. رسالهٔ کاشفه
۳. رسالهٔ فارقه
۴. وافی الطوائف الصوفیه
۵. په منطق کې د قطبي پر میرزا شرحه او ځیني نور، چې له بده مرغه اوس یې درک ورک دئ (د افغانستان لنډ تاریخ. د لوی استاد علامه حبیبي، د استاد بېنوا ژباړه، د پېښور چاپ او د کندهار او کابل تاریخي مسجدونه. ۱۲۰ مخ د محمدولي ځلمي تالیف).

علامه مولوي عبدالحق اخوند علیزي (۱۲۸۸ هـ ق مړ) هم د مولوي احمد الکوزي له علمي او معنوي فیوضاتو څخه ګټه اخیستې ده او د همدغې شاګردۍ پر اساس یې په لږ وخت کې په موهوبي علوموکې زیات شهرت پیدا کړ.

[٧] (میا نورمحمد داوی د پوټي په میاصاحب شهرت لري، او د میانورمحمد له مشهورو خلیفه ګانو څخه و. دی د لوی احمدشاه بابا په زمانه کې و او د ځینو روایاتو له مخه. ده له میا فقیرالله حصارکي شکارپوري (۱۱۰۰ - ۱۱۹۵ هـ ق تر منځ)

یوه مناره د څلوېښتو مترو د جګوالي په اندازه د ده پر قبر جوړه کړې ده. د ده د کرامتونو او خارقه عادتونو کیسې په کندهار کې تر اوسه د خلکو په خولو کې سته.

ښاغلي ځلمي صاحب له (فتح محمدي) رسالې څخه د میاصاحب په اړه یوه برخه را نقل کړې ده، چې دلته یې د معلوماتو د اضافې لپاره راوړو:

منازل سلوک طریقهٔ عالیه مجددیه بانوریه تا انتها طی کرده بود و خلافت مطلقه از میان عبدالحکیم صاحب یافته بود و عشق او بغایت کمال بود. وقتیکه حضرت میان عبدالحکیم صاحب به امر شاه حسین هوتک از قندهار اخراج میگردید در وقت وداع حضرت لوی میا صاحب (رح) به جانب میانورمحمد صاحب نورزی گشتاند و گفت که تماشه سیر باغهای قندهار را شما بکنید و ما میرویم. بمجرد شنیدن این کلام بصد گریه و ناله و آه و افسوس گفت: هر دو چشمم بیائید از کاسهٔ سر بر زمین تا غیر از محبوب کسی را و چیزی را به شما نه بینم فی الحال چشم آن عاشق عارف بر زمین افتادند، حضرت لوی میا صاحب چون صدق معامله و فرط محبت از خلیفهٔ خود دید، فرمود که چشم باطنت کشاده باد و کشاده شد بفرمان و قدرت حق تعالی.

میگویند یکروز طالبان در مسجد او را امتحان کردند و گفتند میاصاحب! هر گاه چشم شما کور است و افتاده است پس نماز در پس اعمی مکروه است پس تو چرا نماز جماعت مردمان را میدهی؟، گفت بیشک چشم سرم افتاده اند و چشم سرم به لطف حق تعالی کشاده اند به طفیل آن پیر عرفان، پس طالب العلم یک مورچه سرخ در درون کفش او انداخت و کفش او را نهاد که به پای میکرد حافظ به نور باطن ملاحظه کرد و آن مورچه از میان کفش او کشید و گفت دیگر چیزی نیست و بپای کرد.

ملا صاحب تمام عمر مصروف احیای سنت و قطع بدعت بود[۸].

کله چې ما (د دې کرښو لیکوال) د میاصاحب په باب د ده د کورنۍ له یوه غړي (عبدالوهاب صاحبزاده) څخه، چې اوس هم د میاصاحب په زیارت کې استوګنه لري او د تصوف سلسله یې جاري ساتلې ده، پوښتنه وکړه، نو ده راته وویل، چې پر میاصاحب (رح)، د پوټي میاصاحب مناره جوړه کړې نه ده. بلکې دی وایي، چې زموږ د کورنیو روایتو له مخه، دغه مناره پخپله میانورمحمد (رح) په خپل ژوند کې جوړه کړې وه او د دغې منارې په جوړولو کې پخپله میاصاحب هم کار کاوه.

پورتنی روایت لږ څه کمزوری په دې ښکاري، چې موږ هیڅ داسې لیکلی سند نه لرو، چې په هغه کې دې د دغې منارې

---

ـ ـه هم لیدلي ول. میاصاحب د کندهار د ترنک ار ـ ـونکی و او په زهد او تقوی ډېر مشهور و).

[۸] (فتح محمدي. ۳۸ مخ).

جوړولو په وخت کې د میاصاحب ونډې او عملي برخې اخیستنې ته اشاره پکښې سوې وي، بلکې په ټولو مواردو کې د پوټې د میاصاحب یادونه کېږي. د مرحوم استاد نوري په ناچاپ اثر (زوړ کندهار) کې دغه خبره داسې ذکر سوې ده: دغه مناره د سلو فټو زیاته لوړه او جګه ده او په مینځ کې یې و سر ته ځینې ور ختلې دي او د قندهار د ښار د سهېل خوا ته تقریباً درې کړه بیرته ده، دغه مناره د کندهار د ښار او د څهاردهې له هرې خوا څخه معلومېږي او د عامو وګړو زیارتګاه او د توجه منظره ده. دغه مناره چې جوړه سوې ده تر اوسه پورې همغسې کلکه تکه سپینه ودانه ولاړه ده، چې هیڅا نوکی کار نه دې پکښې کړی او نه حاجت د کار ورته پیدا سوی دئ. وایې چې دا هم د اولیاوو کرامت دئ، ځکه چې دغه مناره او د مبارک مزار چې دغه د مزار سر ته ولاړه ده، په داسې تابند او ډب او خوږه ښېره ځای کې دئ، چې سړی به حیرت ورته یوسي. دغه مناره چې په (۱۱۷۲ هـ ق) کې جوړه سوې ده، چې تقریباً یو سل و څلور نیوې کاله یې کېږي[۹]، تر اوسه یې خم نه دئ خوړلی[۱۰].

وایې چې دغه مناره په (۱۱۲۷ هـ ق) د پوټې میا نورمحمد صاحب داوې چې هغه هم د میا عبدالحکیم صاحب خلیفه و، او بیا د ده د تکه وروروسته د میا نورمحمد صاحب نورزي ماذون سو، پر جوړه کړه.

دغه مناره د ثور د انقلاب په اوایلو کې په توپونو وویشتل سوه او له یوه مخه ویجاړه سوه، چې بیا یې په دې وروستیو کلونو کې د ګل اغا شېرزي (د وخت والي) په خاصه پاملرنه د جوړېدو کار پیل سو، چې له بده مرغه د ده تر تبدیلی وروسته یې کار په ټپه ودرېدی، چې اوس یې هم کار نیمکله پاته دئ.

دغه میا نورمحمدصاحب د نوري مرحوم نیکه و. ده خپل تخلص هم د همدې نیکه د نامه په ارتباط ټاکلی و. که څه هم استاد نوري په لومړي سر کې (صاحبزاده)، بیا (لګیا) تخلص کاوه، خو وروسته یې دغه تخلص په (نوري) الیش کی، چې دغه کار دوه علته درلودل، یو دا چې د میانورمحمد له نامه سره یې ارتباط لاره او بل نوري په قام نورزی و. په دغه بابت کې نوري مرحوم داسې څرګندونه لري:

ما او زما وروڼه د دغه جهته چې ځانونه د میا نورمحمد صاحب و لمسي توب ته منسوبوو او نورزي هم یو، خپل فامیلي تخلص مو (نوري) غوره کړی دئ[۱۱].

نور بیا ...

---

[۹] مرحوم استاد نوري دغه خبره د خپل کتاب د تالیف (۱۳۲۸ هـ ش) په وخت کې کوي.

[۱۰] زوړ کندهار، د مرحوم استاد نوري، ۶۳ مخ. قلمي نسخه.

[۱۱] (زوړ کندهار [قلمي]. ۸ مخ).



لیکوال
کاندید اکاډمیسین محمدابراهیم عطایي

د پښتو پر شفاهي داستان یوه تحلیلي څېړنه:

# ملي هنر د کلتور په هینداره کي

دوهمه برخه

د ملي او غیر ملي اصطلاح په باره کي دا اصل همېشه او هر ځای د منني وړ ګرځېدلی دئ چي حساب د اکثریت او اقلیت په حدود کي وویشل سي. یعني هغه چي په اکثریت اړه لري هغه ملي او د اقلیت په پلو مربوط غیر ملي ګڼل کېږي.

ممتاز طبقات د اقلیت نمایندګي کوِي او د خپل طبیعت او طبقاتي تفوق پر اساس د دوی ګرده شیان د اکثریت سره تفاوت لري. نو د هنر په برخه کي هم مسئله د دغه قراره ده، یعني اصیل هنر هغه دئ چي اکثریت ورسره آشنا وي.

ممتاز طبقات چي ذوق ئې د اقلیت نمایندګي کوي نو د دې لپاره چي هغه ته اصیل رنګ ورکړي او خپل تفوق په وساتي نو له داسي هنرونو سره علاقه ساتي چي هغه د اکثریت څخه بېګانه وي. څرنګه چي اکثریت هم ځانته هنر لري او هم د بېګانه هنر سره ناآشنا وي نو د خپل هنر په ساتنه کي تعصب کوي او بېګانه هنر

لکه نور بېګانه شيان په نفرت ګوري او د
ځان يې نه بولي.
دا (ملي) کلمه يو سياسي اصطلاح
ده چي په نونسمه پېړۍ کي د (مليت) د
سياسي فلسفې له عروج سره عامه سوېده
او څرنګه چي دا فلسفه د ټولنو پر مادي او
معنوي زېربنايي او روبنايي مؤسساتو
رامحيطه سوې وه نو د هنر په باب چي يوه
روبنايي مؤسسه ده هم فيصلې او احکام
لري.

څرنګه چي زموږ د بحث موضوع
ملي هنر دئ نو ځېرنه ئې داسي راپيل
کوو، چي د هنر او کلتور په باب به بېله
ځېرنه وکړو او د هغو په توضيح به د ملي
هنر په باب نتيجه راوباسو.

**هنر څه شي دئ؟**

هنر د انساني ذهن يو تعبيري وسيله
ده او يو هنرمند په دغه وسيله خپل تخيل
او تفکر نورو ته انتقالوي. يعني کله چي
يو هنرمند د خارجي جرياناتو څخه په خپل
ذهن کوم حالت احساس کړي او بيا هغه ته
د خپل نفسي انفعال پوښ ورواغوندي دې
ته نو هنر ويل کېږي. د هنر په باب
تعريفات خورا ډېر دي او دا چي د هنر په
باب يو قناعت حاصلوونکی جواب پيدا
کړو نو عوام ډېر ښه قضاوت لري، ځکه
دوی د ژوند جريانات د خپل ذهن په پاکه
هينداره کي هغسي ويني لکه تخليق چي
ئې راغلی وي. د ژوند د جرياناتو په جمله
کي هنر خاص مقام لري او موږ نو د دغي
پديدې په باره کي هغه وخت يو ثابت
تعريف پيدا کولای سو، چي د عوامو په
ذهن کي د دغي پديدې انعکاس وګورو.

د نونسمي پېړۍ د اواخرو او د
شلمي پېړۍ د اوايلو معروف ليکوال
تولستوی چي پر هنر يې د (هنر څه شي
دئ؟) په نامه اثر ليکلی دئ د دغي
پديدې د تعريف په باره کي تر هر چا د
عوامو څخه استفاده کړېده.

تولستوی وايي چي: "يو عوامي
سړی جداً معتقد دئ، چي هنر د ښکلا
(زيبايي) محصول دئ او بس عوامي
سړی دغومره درک کولای سي چي د
ښکلا ځېړني يو پوهاند په اوږدو کلماتو
او اصطلاحاتو هغه ته يوه ستړې لاره په
مخه اخلي[1]. تولستوی تر ځان پخوا
ځېړونکي د (ښکلا) په بحث کي ډېر
ستړي ويني او په رښتيا چي هغه مهال له
دغي مسئلې څخه يوه معما جوړه سوې
وه.

د يونان صوفي فيلسوف (افلاطون)
د ښکلا (زيبايي) پر لاره هنر په متافزيک
شېوه څېړي او هغه يې د خپل فلسفي
(مثالي) مکتب په پيروي د يو
ناپېژندونکي نړۍ عارضي مثال وباله.

د اروپا په کليسايي دوره کي تر هغه
وخته پوري چي د ارسطو تفکر پر عصر
غلبه ونه موندله د افلاطون خيالي اصول د
(نويو افلاطونياتو) پر توضيح غالب وه.

ارسطو په خپل منطقي تصنيف کي
چي د علومو وېش کوي نو د هنر په باره
کي بيا هم خيره له ابهامه نه راباسي او په

[1] هنر چيست؟ د ل. تولستوی اثر. ۱۵مخ.

دغه ابهام کي نو تر نو نسمي پېړۍ پوري د تفکر خاوندان لالهانده دي او کوم تفريقات چي پر دغه اجتماعي پديده روان دي په غټ شمېر کتابونه ځني جوړ سوي دي. د فرانسې تر انقلاب وروسته چي تږۍ غټ تکان خوړلی وو نو د ممتازي طبقې پر ضد د عوامو عکس العملونه په هره رشته کي راپورته سوي وه، دغو عکس العملونو د (مليت او ملي) په کلماتو داسي اصطلاحات منځته راوړي وه چي اجتماعي ريښې يې درلودې. تر دغو اصطلاحاتو لاندي ټوله مادي او معنوي شتمني په ملت پوري تعلق درلود او ملت نو هغه اکثريت وو چي د دريمي طبقې (عوام) څخه ئې تشکيل موندلی وو.

د عوامو د معنوي شتمنۍ په برخه کي بيا هم هنر څه هېره سوې پديده نه وه بلکي دا هم د عوامو په تملک کي ورکول سوې وه. د همدغي فيصلې په قرار وو چي د پخواني هنري مکتب (کلاميسيزم) جابرانه اصول مات سول او د (رومانتسيزم) مکتب منځته راغی. په دغه وخت کي چي ټوله اجتماعي مؤسسې د پخواني بنديزونو پر ضد انقلابي سوي وې نو د دغه نوي هنري مکتب (رومانتسيزم) غايه او هدف هم داسي اعلان سو چي (رومانتسيزم) يعني په هنر کي (لبراليزم).

څرنګه چي د فرانسې له انقلاب څخه وروسته عوامي تفکر د سخت تصادم سره مخامخ سو نو عوامي عصبيت دوی بيا هم د مسايلو په تحليل کي له پخواني پېچومو څخه راونه ايستل او نو دا وجه وه چي څرګند هنر ورو ورو له افلاطوني ابهام څخه يوه نوي تياره څاه ته وغورځول سو. په دې وار کي د هنر څېړونکي پوهان يا د واقعيت څخه رم وکړ او د طبيعت د وحشت سره يې الفت قايم کړ او يا ئې ښکاره واقعيتونه په پردو کي راتاو کړه، چي د دغه مطلب څرګندوی بيا هم د هغه رومانتسيزم بقايا او ميراث وو چي موږ يې د (سبموليزم) په نامه يادوو.

د دې لپاره چي د هنر په باره کي د رومانتسيزم د مکتب د دغو درو ښاخونو د انحراف څخه پوره خبر واوسو نو د کلام په خلاصه به د دغه طرز تفکرونو په باره کي د رومانتيکي مؤسسينو څخه څو کلمې را نقل کړو:

د (رومانتسيزم) په باره کي به دا کفايت وکړي چي د يوې هنرمندي شاعري فرانسوي (ژرژساند) دا خيال راوړو چي وايي: "موږ يو بدبخت نسل يو او له همدغه خاطره ناچاره يو، چي د هنر په دروغو د ژوند له واقعيت څخه ځانونه ليري وساتو"[1].

فکر وساتئ ژرژساند د يو محروم نسل په نمايندګي رغېږي او د دې لپاره چي د دغه محروميت څخه يوه فراموشي راولي نو د هنر په دروغو ځان هوسا کوي.

د سمبوليزم د مکتب يو لوی

[1] رياليسم و ضد رياليسم در ادبيات: ۹۵ مخ.

شخصیت (مالارمه) وايي، چي: په شعر کي (له دغه څخه د هنر پر ښاخو هم قیاس کېدای سي) د نوم اخیستل د څلورو څخه درې برخي لطف له منځه وړي.

نو له دغه لحاظه دئ چي د اشارې او کنایې لپاره احتیاج پیدا کېږي تر څو په دې وسیله د هنر اصلي ښکلا له منځه ولاړه نه سي[۲].

د (سور ریالیزم) د خیالي هنري مکتب په معرفي کي (رمبو) داسي وايي: "... پر دې عقیده لرم چي د خپل ذهن اشفتګي مقدسه وبولم"[۳].

اګزیستالیزم د منحطو مکتبو څخه یو بل مکتب دئ چي مؤسس (اندره مالرو) یې داسي تعریفوي: "د ژوند درک بې له یوې وارخطایي بل څه حاصل نه لري"[۱].

تر دې ځایه د نونسمي پېړۍ د علمي ټولنو هغه وارخطایي وه چي دوی د هنر په باره کي د هغه مکتب په پیروي څه ویل چي هغه ئې په هنر کي (لیبرالیزم) باله د هنر په باره کي چي هر څونه بلند بالا تحلیلات منځته راسي نو بیا هم یو (عوامي) سړی کولای سي چي د تقلبي او اصلي هنر تر منځ توپیر وکړي.

(تولستوي) دغه مسئله یوه بزګر ته حواله کوي او د فکر په فراغت هغه په دې بریالی ویني چي د یو تقلبي او اصلي هنري اثر تر منځ قضاوت وکړي. ل. تولستوي یو ښه هنري اثر هغه بولي چي د خلکو د ژوند سره مرتبط او متصل وي[۲].

عوام د یو تقلبي او اصلي هنر اثر لپاره دونه استدلال نه کوي لکه د هنر سانسوروونکي چي یې کوي، بلکي هغه د ځان او خپلي طبقې لپاره اصلي هنر ښه پېژني او د هغه سره الفت نیسي، خو تقلبي هنر چي د ممتازو طبقو لپاره استخدام سوی وي نه یې پېژني او نه مینه ورسره ساتي.

د ولسونو شفاهي کیسې چي د عوامو تخلیق دئ نو ځکه د هغه سره علاقه د عوامو له خوا ساتل کېږي او د بهترینو میراثونو په ډول د هېري له چپاو څخه ساتل کېږي.

د دغو میراثونو په جمله کي شفاهي ادبیات او په هغو کي شفاهي کیسې بهترین هنري او ادبي میراثونه دي چي د اجتماعي احساس په پیروي له اولنیو څخه اوسنیو ته پاته دي.

اولني شفاهي کیسې او افسانې د هغو ولسونو په کلتور کي ډېر ژور ځای لري چي دوی د کلتوري تاریخ سابقه لري، د دې مطلب د ثبوت لپاره به کفایت وکړي چي یو قدیم ترین ولس (یونان) په مثال کي راوړو. د قدیم یونان له هنري آثارو څخه د ړانده شاعر (هومیر[۱])،

---

[۲] ریالیسم و ضد ریالیسم: ۱۱۷ مخ.
[۳] پورته مأخذ: ۱۲۷ مخ.
[۱] پورته مأخذ: ۱۳۸ مخ.

[۲] هنر چیست: د تولستوی اثر. ۴۳ مخ.
[۱] د یونان یو اولنی شاعر چي د میلاد څخه وړاندي په اتم یا د تاریخونو په اختلاف په دوولسمه پېړۍ پوري تعلق لري.

(ايلياد[2]) او (اوډيسه[3]) هغه اثار دي چي د بشري کلتور ډېر زاړه مناسبات يکښې پېژندل کېږي زه د دغه تاريخي او کلتوري اثر مثالونه هغې برخې ته معطلوم چي په مقايسوي ډول د پښتو او يوناني ادب د شفاهي کيسو په برخه کي تصنيف سوې ده. پورتنۍ ټوله څېړنه پر دې ټکي بنا وه چي هنر د ژوند څخه بېگانه گي نه مني هنر څه د تعريف په ساحه کي او څه د ژوند سره په علمي صحنه کي يوه داسي پديده ده، چي تر هر څه وړاندي د خپل تعريف مخ کي ژوند ته احتياج لري. يعني د خبري په کامل وضاحت هغه ته هنري اثر چي د ژوند له پديدې سره رابطه نه لري هغه له هر ډول ارزښت څخه خالي او عاري دئ. کله چي ژوند د يو هنري اثر سره حلقه سي نو د هنر په باره کي خبره له ابهام څخه راوزي او د واقعيت حدودو او ثغورو ته راداخلېږي.

په دې ځای کي د يوې هنري پدېدې په اړخ کي د (واقعيت) اصل کښېښول سو.

او س نو دې پوښتني ته هم جواب په کار دئ چي واقعيت څه شي دئ؟ واقعيت يو فلسفي معظله ده خو په هنر او ادب کي دا مسئله يعني واقعيت هم پخوانو د خونه سره پيچلې دئ لکه د ښکلا (زيبايي) په باره کي چي سرگردانه سوي دي.

واقعيت هم د (ژوند) څخه سوا نه سي څېړل کېداى، چيري چي ژوند وي هلته به واقعيت وي.

دا د فلسفي او سايښسي احکامو په پېژندنه حکم دئ.

زه په دې کي نور نه ږغېږم چي واقعيت څونه د ژوند سره رابطه لري؟ خو چيري چي ساينس حکم کړی وي نو د واقعيت په پېژندنه کي له نورو حدودو څخه سرې په مشکل د تخيل د دنيا تابع گرځېداى سي.

د هنر د هغو فلسفي نظرياتو په باب چي هنر د ژوند له واقعيت څخه شړي خبري ډېري زياتي دي او زه نه غواړم او نه مجبوريت احساسوم چي دا ناتمامه مقايسه پسي وڅېړم، صرف دې اصل ته ځان د تسليمي. په باره کي ناچاره وينم چي هنر يوه ژوندۍ پديده ده او څرنگه چي د (واقعيت) سره نژدېوالى نه بلکي يو ځای والى دئ نو د دې قابل ده چي پر هغه بحث وسي او د بشري ژوندانه او بشري ټولني په بدلون کي چي د ټولني د ارمان مقصد اعلى دئ داسي فکر وسي چي هغه په دغه ټکلې لار کي د خير اعلى لپاره په کار ولوېږي.

کله چي (ژوند) او (واقعيت) دواړه سره يو ځاى سي نو د (هنر) په باره کي هره پوښتنه داسي جواب پيدا کوي چي اصلي هنر هغه دئ چي بنياد او بنسټ يې پر ژوند او واقعيت بنا وي. دا لومړی اصل دئ چي د هنر په باره کي د منني مقام لري او تر دې ها خوا ته هر هنر او د هغه حدود چي په نورو پېچومو کښېوزي دلته د کلاوي سر

---

[2]،[3] دا دوې افسانې په ادبي شېوه چي په شفاهي ډول راپالل کېدې (هومير) ته منسوبې دي.

ورک کېږي او دا نو هغه ورکه ده چې تر نن پورې پیدا سوې نه ده.

که موږ د ژوندانه او واقعیت په چوکاټ کې پر هنر وږغېږو نو بې له دې چې زیاتو شواهدو ته پناه یوسو پوهېدای سو چې ټولنه دا قضاوت ډېر ښه کولای سي، نو ځکه ټولنه ګرده هغه آثار ساتي چې د ژوند او واقعیت سره رابطه لري او د دې ډېر ښه مثال د هغو په فولکلور کې شفاهي کیسې دي چې نه یې هېروي او حتی د زرګونو کالو په دوران کې یې په خپلو سینو کې ساتي.

دا یو واقعیت دئ چې د هر ولس او هرې ټولنې د هنر تاریخ د هغو د کیسې او افسانې تابع وي او د دغو هنرونو په تاریخ کې د هغو هنرونو تاریخ د نسبتي بقا په مقایسه ژوندی پاته وي چې د ژوند او واقعیت سره نژدېوالی ولري. د (هومیر) له (ایلیاډ) او (اوډیسې) څخه نیولې بیا تر مقدسو کیسو پورې هغه افسانه ژوندۍ پاتېږي چې د ژوند او واقعیت سره یې رابط نژدې وي.

د (هومیر) کیسه یعنې (ایلیاډ) د یوې داسې افسانې په ډول خلکو د لیکنې تر وخت پورې په سینه کې ساتله چې په هغه کې د دوی افتخار ساتل کېدی.

د (افتخار) کلمه یو کلتوري ارزښت لري د (افتخار) کلمه مخکې تر دې چې مقدس ارزښت ولري د یوه ساده ژوند سره یې رابطه نژدې ده. نو ځکه موږ ویلای سو چې ساده ژوند د یوې ټولنې د خلکو ابتدایي ژوند دئ او په ابتدایي ژوند کې د ژوند او د هغه د لازمي (واقعیت) اصل د مسایلو سرحلقه دئ.

که د درې زره کالو په دوران کې د تحریري ادب پیلامه پسې واخلو نو هغه اثر چې په دغه دېرش پېړۍ کې یې بیا هم د بشر د قدیم کلتور یو تصویر ایستلی دئ هغه د (هومیر) اثار دي.

دا آثار که څه هم د اساطیرو[1] په جمله کې شمېرل سوي دي خو څرنګه چې د ژوند له ماجرا سره رابطه لري نو که څه هم واقعیتونه پکښې مغشوش سوي دي بیا هم نسبت و نورو آثارو ته هم ژوند ته نژدې دي او هم د واقعیت څخه لیرې نه دي، نو ځکه یې خپل حیات ساتلی دئ او نن موږ د قدیم بشري کلتور په پېژندنه کې دغه فولکلوریک آثار استخداموو او پوهېږو چې دغه آثار د نړۍ د ادبي فولکلور یوه قدیمه منبع ده.

دغه آثار او دغسې نور آثار زموږ د بشري نړۍ د قدیم کلتور معرف دي او په هغو کې موږ په ټولنه کې د خلکو د مناسباتو په کمیت او کیفیت خبرېدای سو.

دا خاصه یوازې د ولسونو د فولکلور برکت دئ چې په دې جمله کې د پښتو شفاهي کیسې هم شاملې دي او د هغو په علمي څېړنه موږ د خپلې ټولنې د اجتماعي تاریخ مختلفې دورې سره جلا کولای او پېژندلای سو.

---

[1] اساطیر: د قدیم یونان ادبي آثار چې په افسانه کې یې خرافاتي رنګ درلود.

د دې لپاره چې دا موضوع مو په عمیق ډول څېړلې وي دا پوښتنه هم جواب راڅخه غواړي، چې:

**کلتوري څه شي دئ؟**

هر کله چې اصل قبول کړو چې انسان یو اجتماعي مخلوق دئ یعني یو داسې هستي ده چې د ژوند په جریان کې ټولنه جوړوي او هر څوک چې د ټولني په منځ کې ژوند پر یو لړ مناسباتو او روابطو بنا کوي نو موږ هغه ته (د کلتور خاوند) وایو.

کوم روابط او مناسبات چې د ډېرې اولنۍ او پخوانۍ بدوي ټولني څخه د انسانانو تر منځ موجود سوي او بیا یې د ټولني د تکامل سره ارتقا کړې ده نو دغه مناسبات او روابط تر یوه عنوان لاندې راجمع کېږي چې دغه عنوان ته (کلتور) وایي.

د کلتور کلمه د (لاتیني) ژبې له ریښې څخه مختلفو اروپایي ژبو ته په بېلا بېل اشکالو ورننوتلې ده، چې دلته یې موږ یوازې انګرېزي تلفظ راوړو چې هغه (کلچر) ورته ویل کېږي. (اګري کلچر) د کلمې په ریښه کې تر هر څه وړاندې (وده – نمو) افاده کوي او چیرې چې د (اګریکلچر) کلمه په کرهڼه (زراعت) ترجمه کېږي نو په کرنه یا زراعت کې هم د (ودې –نمو) اصل د ورا څرګند دئ.

دا چې کلتور ولې د (اګریکلچر) له کلمې سره مترادف دئ نو یو علت یې هم دا دئ چې دا کلمه د بشري بدویت د هغو دورو میراث دئ چې هلته کرهڼه د ټوله اجتماعي فعالیت سرچینه واقع وه.

او دغسې مشغلې د خپل پراخ مفهوم په چوکاټ کې د انساني مناسباتو (وده –نمو) د دغو تورو تابع کړې وه.

کرهڼه یعني (اګریکلچر) د بشري فهم او ثقافت یوه لویه پدیده ده او په هغه زمانه کې چې د انسانانو محدودو ټولنو ته دغه نعمت په نصیب وو نو دوی ځانونه تر نورو هغو ټولنو چې دا کار یې زده نه وو ممتاز ګڼل.

(اګریکلچر) او د هغه په تکاملي شکل (کلچر) کې چې کوم لوی مفهوم پروت دئ هغه د بشري ذهن له انکشاف سره مستقیمه رابطه لري. کله چې موږ بشر د خپل خلاقه ذهن په قدرت پر دې بریالی وبولو چې دی د آسماني کراتو په تسخیر کې فهم لري نو د دې فهم تکامل موږ تر هر څه پخوا د ده د کلتوري سیر او تحول په مرحلو کې پېژندلای سو.

هغه اولنی بزګر چې ده د اهلي سوي حیواناتو د غذا لپاره په کرهڼه کې د تحول پر هره مهره او ګړې یوه اختراع کوله نو دا یې په کلتور کې د تکامل یو عامل وو. یا په ساده تشریح د دغه بزګر ذهن د خپلو شرایطو په حکم بدلون مانه او دغه بدلون نو د یوې (ودې –نمو) باعث ګرزېدی چې دغه نمو ته نو (کلتور) وایي او ارتباط ئې د (کرهڼي – زراعت) سره د (اګریکلچر) په کلمه کې له دې ځایه راغلی دئ چې د (کرهڼي) له آغاز سره (کلتور یا کلچر) طلوع کړېده. په بریتانیکا انسیکلوپیډیا کې د کلتور (کلچر) په باره کې داسې

لیکل سوي دي:

"کلتور د خلکو عادات او طریقې دي. د هر شي نشو نما ده چي و مخصوصي پالني ته ضرورت لري په مطالعه سره سړی ښه کېږي او د کلتور خاوند کېږي یعني چي له علم او هنر څخه استعداد لري"[1].

"کلتور یا کلچر په خپل پراخ تعریف کي د یو ځای د خلکو په ماضي او حال کي د امیالو، اعمالو، لاسي هنرونو، کرهني، مذهب، اقتصاد، روایاتو، ژبو او افسانو مجموعې ته ویل کېږي"[1].

دا کلمه په اجتماعي پوهنو کي زیاته استعمالېږي انسان پېژندنه (کلچرل، انتروپولوجي) زموږ په معاصره پېړۍ کي یوه نوې پوهنه ده او د دې پوهني پالونکي د بشر تکامل په (فزیکل، طبیعي) او (سوشل – اجتماعي) دوارو خواوو کي پلټي، د کلتوري انسان پېژندني یو بل لوی ښاخ اجتماعي انسان پېژندنه (سوشل انتروپولوجي) ده چي په هغه کي د یوې ټولني د خلکو خپلوي، د ژوند اقتصادي اړخونه، قوانین، عرف او عادات څېړل کېږي[2]. کله چي کلتور د انساني ژوند د عیني او ذهني جریاناتو یوه هینداره وبولو نو د هنر ننداره په دغه هینداره کي خورا ښه کولای سو.

## ملي هنر څه شي دئ؟

په پورتنۍ لنډه تشریح کي د هنر او کلتور بېل اړخونه وڅېړل سول، او په روانه څېړنه کي نو د یو داسي ترکیب سره مخامخ کېږو چي هغه سربېره د هنر پر فلسفي اړخ د یو سلیسي اصطلاح سره هم رابطه لري.

دلته چي هنر په ملي ساحه کي څېړو نو د (ملي) کلمې څخه مو مراد بیا هم دا نه دئ چي په یوه محدوده سیاسي ساحه کي هنر راکښېباسو، بلکي کله چي د (ملي) کلمه د هنر سره په استعمال کي ملګرې کوو د دې کلمې هغه اجتماعي کیفیت په نظر کي نیسو، چي پر هره بشري ټولنه یې د انطباق امکانات میسر وي.

کله چي موږ د هنر له تشریح څخه وروسته کلتور تشریح کړ نو هدف دا وو چي د هنر او کلتور په ارتباط کي د مقایسې لپاره مواد ولرو اوس چي پر (ملي هنر) څېړونه شروع کوو نو د مطلب د اثبات لپاره په پوره زړه ویلای سو، چي "هر هغه هنر چي د یوې ټاکلي ټولني په کلتور کي ریښه ولري او د ټولني له ذهني او عیني جریاناتو سره اشنا وي هغه ته ملي هنر ویل کېږي، یا په بل عبارت کوم هنر چي د هغې ټاکلي ټولني د کلتور په هینداره کي یې کره وړه، نا آشنا، نابلده او بالاخره بېګانه نه وي هغه ته ملي هنر ویل کېږي".

ل. تولستوی هنر د احساس د انتقال وسیله بولي د (ملي هنر) په باره کي وایي:

"ملي هنر هغه وخت په وجود راځي

---

[1] د کندهار مجلې ۷۳ ګڼه، ۱۳ مخ د سربن مقاله.
[1] نیو کالج ستنډرډ ډکشنري: ۲۸۷ مخ.
[2] مین این دي پریمتیبو ورلډ (انسان په قدیمه ... ړی کي): ۴ مخ.

چې د عامه خلکو له جملې څخه یو انسان د خپل هغه قوت د احساس د انتقال ضرورت پیدا کړي چې ده په خپله ازمویلی او احساس کړی وي"[1].

هر کله چې (ملي هنر) د یوې ټولنې په مادي او معنوي انکشاف کې یو مهم عامل وبولو نو موضوع یو لږ څه فلسفي رنګ اخلي او دا پوښتنې جواب غواړي چې انساني ټولنې د (جمع) په حال کې کوم هنري باارزښته میراثونه پرې ایښې دي؟

او د (فرد – فردیت) په حال کې یې هنر څونه د ابتذال په غېږ ورو ستلی دي؟

د انساني ټولنو تاریخ موږ ته وایي چې د اولنۍ ټولنې په تشکیل کې ځکه انسان پر بقا بریالی سو، چې د نورو حیواناتو په جمله کې ئې په (جمع) د قدرت د تخلیق احساس وکړ او همدغه احساس نو ده ته د مځکې پر مخ د هر ډول نامساعدو شرایطو په غېږ کې بقا ورکړه.

د (جمع) قوت او قدرت تر هغه وخته پورې باقي پاته وو چې (فرد) په ټولنه کې د خپل شخصیت د قدرت منفي احساس وکړ چې ده ته یې د مادي وسایلو په اتکا د (موږ) پر ځای د (زه) پر لار یوه درنه خطا په نصیب کړه. د (زه) احساس هغه جنتي ژوند چې په (جمع) کې پروت وو په یوه دوږخ الیش کړ په دې دوږخ کې نو انسان چې د تخلیق حرکت کاوه هغه د یوه نوي

[1] هنر چیست؟ ۱۲۲ مخ.

تخریب باعث وګرزېدی[1].

د (جمع – اجتماعیت) د دورې هره پدیده چې هنر هم د هغه یو جزء دئ د انساني ژوند د پوره افتخار حکایت کوي چې په دغه جمله کې فولکلور او په هغه کې عوامي ادب او د عوامي ادب په غېږ کې شفاهي کیسې د پورتني مطلب شاهدي ورکولای سي.

کله چې د پورتنۍ مقدمې په رڼا کې د (زه) او (موږ) د (انفرادیت اصالت) د (اجتماعیت د اصالت) سره په موازنه ایږدو نو دا حقیقت مو کاملاً توجه جلبوي چې د (هنر) ترقي په (اجتماعیت) کې وي او تر دې وروسته به هم دا حقیقت ادامه لري.

خبره د (ملي هنر) ده. هنر لکه ل. تولستوی چې وویل د قدرت د احساس د انتقال وسیله ده نو د (جمعي) او (فردي) احساس په دواړو حالتو کې دا وسیلې د استخدام دوه حالته پیدا کړي دي.

د جمعي حالت په دوران کې دا وسیله د ټولنې د خدمت یعني د ټولنې د فهم او غوښتنې منعکس کوونکې ګرځېدلې خو په فردي حالت کې یې یو مرموز شکل پیدا کړی او بالاخره په ابتذال منجر سوې ده.

ادبیات او په هغو کې کیسه خاصتاً شفاهي کیسې چې هر څه د (جمعي اصالت) په احساس منځته راغلي وي نو که پخوانۍ وي (فولکلور) او که نوی

[1] ادبیات از نظر گورکی: ۷۹ مخ.

ادب وي په نړۍ کي د نخبه میراثونو له جملې څخه شمېرل کېږي. (ملي هنر) چې د هنر لویه کورنۍ جوړوي تر هغه وخته پوري (ملي) افتخار نه سي حاصلولای تر څو يې (جمعي اصالت) نه وي منلی.

د یونان د (هومریک) دورې څخه نیولې بیا د (ریالستیک) دورې تر معاصر وخت پوري چې نخبه ادبیات د ادبیاتو تاریخونو قید کړي دي په دې تفکیک ئې ښه او بد بېلولای سو چې په هره ټاکلې دوره کي د ادبیاتو د هنر د کورنۍ کومه برخه او فن د (جمعي اصالت) په احساس منځته راغلي دي د (ملي ادبیاتو) کلمه په خپل نهایي تحلیل کي د (جمعي اصالت) احساس ذهن ته ورسپاري، د دې تحلیلي څېړني په نتیجه کي نو ویلای سو، چې د هنر د کورنۍ څخه هر ښاخ او د دغو ښاخونو له جملې څخه د هر ښاخ بېل بېل اړخونه هغه وخت د ټولني په خير او خدمت استخدام کېدای سي، چې د (فردي اصالت) د احساس څخه عاري او جلا وي.

دا اصل نو له هغه وخته څه په ابتدايي ټولنه کي او څه په مترقي ټولنه کي د (ملي هنر) کلمه پیدا کوي چې د ټولني د (کل) نمایندګي وکړي.

د بې خط او بې سواده ټولني په هنر کي چې کیسه ئې د لومړنیو علایقو څرګندوی ده موږ ډېر داسي واقعیتونه موندلای سو چې هغه د دوی د (جمعي) ارمانو معرف دي او په همدې ترتیب موږ په مترقي ټولنه کي د هنر ټوله ښاخونه چې یوه برخه ئې ادبیات او په هغو کي کیسه هم شامله ده هلته په امتیاز قایلېږو چې هغه د (کل – جمع) د اصالت په احساس منځته راغلې وي دغه د (کل – جمع) اصالت دئ چې په هنر کي د (ملي) طلوع پلوشې خپروي او موږ ئې په دوه حالته کي مطالعه او څېړلای سو. یو هغه حالت دئ چې د ټولنو په اصل فولکلور کي ځای نیسي یا په بل عبارت ځان څرګندوي او دوهم حالت ئې د بشري ټولني د عیني او ذهني انکشاف په مرحله کي چې واقعي هنر ئې ډېر ښه ښکارندوی وي دئ تظاهر کوي. دا دوه حالته د اجتماعي تکامل د (اجتماعیت) په مرحله کي تبارز کوي او موږ ئې په ادبیاتو کي د (ریالیسم) د مکتب د اصولو په پیروي جلا کولای سو.

نو اوس دا نتیجه ګیري کوو چې د ولسونو هغه هنر چې د (جمع) په احساس منځته راغلی وي که د فولکلور په ساحه کي واقع وي او که د هنر په هر نوي پوښ کي لوېدلی وي هغه ته د (ملي هنر) افتخار ور په نصیب دئ.

د هنر په کورنۍ کي ادبیات او په ادبیاتو کي کیسې او کیسې په خپل ولسي رنګ چې د شفاهي کیسو تر عنوان لاندي راځي او د فولکلور یو باارزښته برخه تشکیلوي د پورتني تحقیق لپاره د څېړني ډېر ښه مثالونه برابرولای سي.

د یو ساده مثال په ډول: "په اول کي د (زه) احساس د (موږ – جمع) له یو ځای والي څخه ځان جلا نه باله. ده ځان د قبیلې د تجربو یو مخزن احساساوه او کله چې

ئې دا تجربې په خپله اندېښنه او افکارو واړولې نو د نوو قوتونو د تجمع او پراخولو لاره ئې اسانوله.

فرد چې پر نورو د تفوق مزه وڅکله نو د دې په ترڅ کي چې د قبیلې قهرمانانو تصویر په ذهن کي وساتي کوښښ ئې وکړ هغه حقوق چې ده ته تفویض کېږي د خپل شخصي منفعت لپاره ئې په کار واچوي"[۱].

دغه احساس موږ په فولکلوریکه ساحه کي هر ځای څېړلای سو. د یونان د (هومیریک) دورې آثار د دې مطلب ډېر ښه مثال دي او موږ ئې نو ځانته نږدې شاهد د پښتو شفاهي کیسې (موسی جان او ولیجان) په داستان کي پیدا کولای سو.

په دغه کیسه کي چې په تفصیل سره به ئې هره برخه د اجتماعي مطالعې په رڼا کي وڅېړل سي. ولیجان او (موسی جان) دوې قهرماني څېرې دي چې د (موږ) اصالت په پیروي او په ناخودآګاه ډول د هغې لاري مبارزین دي چې په هغه کي د (موږ – جمعي اصالت) احساس پروت دئ خو په مقابل کي هغه بله څېره یعني (سهېلي خان) (د فردیت – زه) د احساس نماینده دئ او کوم حقوق چې په قبیله کي ده ته ورکول سوي وه ده د خپل شخصي نفع لپاره استعمالول او د ده په دغه حرکاتو نو د نوي قوتو د تجمع او پراخېدو زمینه برابره سوه، چې هغه د انتقام جویۍ په میدان کي د (تانو) له خوا د (سهېلي خان) قتل او په دې عمل کي د کلیوالو خوشحالي ده.

د دې مقایسې په نتیجه کي نو ویلای سو، چې دغسي فولکوریک آثار چې د (جمع) په احساس منځته راغلي وي ډېر اوږد ژوند لري او که څه هم د لیکني غېږي ته نه وي لوېدلي بیا ئې هم د (جمع) غړي (افراد) په سینو کي ساتي او دا کار ځکه کوي چې دا د دوی د ارمان نمایندګي کوي او هر وخت چې د خپله یاده دا کیسه په یاد راوړي یا ئې اوري نو د هغه څخه خوند او لذت اخلي دغسي آثار چې شفاهي کیسه ئې ډېر ښه مثال دئ د (ملي ادبیاتو) په جمله کي ځای لري او دا ځکه دا ځای ورکول سوی دئ چې هم د (جمع) تخلیق دئ او هم (جمع) د هغه سره علاقه لري.

د وروستۍ تجربې څخه نو موږ دا حکم کولای سو، چې زموږ پښتو شفاهي کیسې اکثراً د (جمع) د اصالت د احساس په پیروي منځته راغلي دي او موږ ئې نو (د ملي ادبیاتو) په جمله کي ډېر ښه میراثونه بللای سو.

د دې بحث په نتیجه کي نو ویلای سو، چې ملي هنر هغه دئ چې د ټولني د کل (جمع) د علایقو معرف وي او کله چې هنر د دغه اصل تابع سو نو د ټولني د کلتور جزء ګرزي او په دې برخه کي نو فولکلور لویه او غني برخه لري.

نور بیا ...

---

(۱) ادبیات از نظر گورکی، ۸۲ مخ.

استاد عبدالرؤف بېنوا

# دزړه خواله

ګرانه ملګريه!

پرون ځو تنه ملګري د ښار دباندي يوه ځای ته تللو، چي يوه ته هم د هغه ځای لار معلومه نه وه، مګر هر يوه داسي ښودله چي ګواکي ځو ځله يې هغه ځای ليدلی دئ.

يو د بل په اطمينان کور کورانه يو په بل پسې بې له دې چي له چا نه پوښتنه وکړو روان وو، ډېرو کندو ته ولوېدلو، ډېر پېچومي مو مخي ته راغلل او ځو واره مو لا لاره هم غلطه کړه خو بيا به مو هم يو بل ته دا نه ځرګندوله چې حتی يو نابلده هم په موږ کي سته، حال دا چي ټول نابلده وو، کله به چي له غلطي لاري سمي لاري ته راغلو، نو يو بل ته به مو وخندل او داسي به مو وښودله چې ګويا قصداً او د ساعت تېري لپاره مو لاره غلطه کړې وه، همداسي کله پر لار او کله بې لاري روان وو. ځو چي مخ مو د يوې لويي کلا دېوال راوګرځاوه او نوره نو لار ېبخي بنده سوه ټول ودرېدو او يو بل ته مو په حيرانتيا سره وکتل او په سترګو کي مو سره وپوښتل چي: "لاره کومه ده؟"

خو دا وخت ټولو ته معلومه سوه چي يوه لا هم لاره نه وه ليدلې او صرف د دې لپاره چي د نابلدۍ نيمګړتيا زموږ شخصيت ته متوجه نه سي موږ نه يوازي بې لاري رهي وو، بلکي ناآګاه ځانونه مو آګاه بلل او د ناليدلي لاري راه بلدي مو کوله، دا ځکه چي موږ ځانو ته په دومره دورند شخصيت قايل وو، چي يوې ساده نابلدۍ هم زموږ د شخصيت تله سپکوله، حال دا چي هغه وخت دا لوی شخصيتونه د يوه کوچني ماشوم رهنمايۍ ته اړ وو او چي يو ماشوم راه بلد پيدا سو نو معلومه سوه چي موږ د خپل منزل مقصود لاره ډېره شا ته پرې ايښې وه.

ګرانه ملګريه! همداسي ده زما او ستا د ژوند لاره چي ډېر کلونه تېر سول، خو زما او ستا سفر پخپل کور کي هم ختم نه سو.

قدمونه اخلو، مګر پوه نه يو چي منزل مقصود چيري دئ؟ د ناپوهۍ په توره تياره کي مو شعور بايللی دئ او په غير شعوري تلاښ کي د تذبذب لاس او پښې وهو، خو بيا هم د چا مشورې او مرستي ته ځان اړ نه بولو.

ګرانه ملګريه! نور نو د ناپوهۍ په دې توره دربله کي پاته کېدل لويه ګناه ده او د ناپوهۍ دې تياري ته ځان سپارل غټه کمزوري او بې همتي ده.

موږ د ناپوهۍ د تيارې سره د مجادلې لپاره پيدا سوي يو، نو تر ځو به په دې تورتم کي د ړندو په شان تېرېږو، لار به راځخه ورکه او هدف به مجهول وي؟

د پوهي رڼا ډېره ليري نه ده خو چي زه او ته ځانونه ور ځني ليري و نه ساتو، د هيلو له ګوټ ځخه يوه تسلی بخشه زمزمه اورېدله کېږي چي وايي:

"د تيارو کورو خوا ته رڼا را روانه ده".

که دا رښتيا وي نو راځه چي ځانونه د رڼا راتګ ته چمتو کړو او د رڼا په انتظار دا له ځان او جهان ناخبر ورونه هم راپاځوو، نه چي رڼا راسي او زموږ د غفلت په اثر زموږ کور همداسي د بېځايه غرور په ظلمت کي تور تياره پاته سي.

چلوونکی:
وحيد سباوون

عبدالنافع ثنا/کابل

## غزل

لیدلی چي مي نه دی زه ئې غواړم له هغه
چي زه ئې تصور کولای نه سم داسي څه

زرګونه کاله کېږي چي رنګونه ټولوم
تو ښه دي د تصویر لا خو اشنا نه ده پوره

موټ مه ګڼه چي وپاشلو لاس د پیغمبر
د ښتونه یو غلیمه چي د روځو په جګړه

چي زما سره خندا کوي او زما سره ژړا
پیدا مي په زړه پاک نه کړ همراز لکه آینه

ښمو کي د **ثنا** وه حیا مړه له خندېدو
د شوخ نظر په ګوتو تخنېدله ټوله شپه

*****

واصل حسنیار

## غزل

هر ځای چي کېږه وکړم هلته بې روېباره راسي
ښایي پلزن وي غم چي زما د کور پر لاره راسي

یاران خو ډېر لرم خو ټوله په بلنه راځي
یار خو مي غم دئ بې بلني تر دیاره راسي

سپوږمۍ د غرونو پر سرو لکه روڼ ډال پورته سوه
ښایي د دې وجنګ ته هم لمر تر سهاره راسي

نړۍ د وږي هدیرې په شان خوله بیا وازه کړه
د دې بلا مخ ته به څوک له کومه ښاره راسي

**واصله** ته خو نه شتمن یې او نه زور لرې ډېر
چي یه جوپو جوپو دي خلک ستا لپاره راسي

احمد صمیم

## خطاب

شعره! پرون دي ما ته څه وویل؟
تا خو ویله چي دردونه لیکم
په توره شپه کي به په تورو وینو
پر لویو ګارو یادګارونه لیکم

تا خو ویله د جوزا په اهار
زه پر تور مخ باندي خولې بهوم
او یا د یخ په منجمدو شونډو
زه به دا مړه مړه احساسات پاروم

ته عیاشۍ بوالهوسۍ ته تیار
ته د دردمنو څه بېزاره سولې
ته د هوس د حریصانو سره
په تورو زلفو ګرفتاره سولې

نه نه زما شعره زما د زړه آوازه
دا لنډۍ ورځي دي تېرېږي در څه
نه به رندو ته لاربښوونه وکړې
نه به د خیر چینه بهېږي در څه

یا ته راواخله د سکروټو قلم
چي نړۍ وال دي لر او بر ومني
یا د شهرت افق په وینو سور که
چي په یونان کي دي هومر ومني

یا مي نو بوزه د سکوت په لوري
دغه جهان کومه بقا نه لري
**صمیمه** لار د ګمنامۍ ونیسه
دغه روزګار کومه وفا نه لري

نقیب احمد قریشي

# غزل

د ښکلا میرې د ښکلا پر کلي شپه تېروم
ګراني نن ستا ګراني نن ستا پر کلي شپه تېروم

د نیمې شپې د خاموشۍ د فضا واړه ستوري
راته راګوري د رڼا پر کلي شپه تېروم

که غمازان که رقیبان وي خو چې ته يې پکښې
که وي ژړا که وي خندا پر کلي شپه تېروم

مجبوره يم مجبوره يم مجبوره يم یارانو
چې لا د هغې بېوفا پر کلي شپه تېروم

چې نیمو شپو کې یې سندرې اورم غوږ یم ورته
د موسیقۍ د یوې لتا پر کلي شپه تېروم

چې په لیدو د ځان هر وخت راته خوښي راکوي
زما د ژوند د دې پاچا پر کلي شپه تېروم

چا ویل **نقیبه** ستا د لاس پر تندي څه لیکلي
ما ویل نن د دغه چا پر کلي شپه تېروم

*****

شېرمحمد عزتیار

# غزل

ستا پر مخ نقاب دئ د مهتاب وینم رڼا پکښې
لمر د سپین جبین دي تجلي کوي ژړا پکښې

نقش مي د زړه پر سر تصویر ستا د چشمانو دئ
نخښې د مجنون رنګه یادېږي د لیلا پکښې

ستا پر سپین رخسار چې تار په تار پېکي د زلفو سي
دلته د مین زړه امید ونه سي پیدا پکښې

زه دې د ښایست د باغ د ګل په تماشو راغلم
خوله دي ده غنچه شونډې غوټۍ کوي خندا پکښې

خال دي لکه ستوری په ابرو کې د هلال سره
ډېر پکښې پراته دي صفتونه د ښکلا پکښې

حوره چې حلقه د عاشقانو په ازل کې سوه
نو ... شېرمحمد **عزتیار** پروت و د شیدا پکښې

احمد فاني

# غزل

د سترګو په حرم کې فرشتې دي سپیني ښکلي
ګرېوانه مخ ته ورسه مېلمنې دي سپیني ښکلي

چې ګل دي د ښایست زما تر عمره خزان نه سي
چاپېره مي د اوښکو پرې چینې دي سپیني ښکلي

د عشق مستو لمبو مي د کوګل اورونه مست کړل
تو ښونه مي پر مخ ګوره خولې دي سپیني ښکلي

بېګاه مي په وصال د یار پر مخ اوښکي راتوی سوې
شبنم نه دئ د اوښکو څو دانې دي سپیني ښکلي

خروښ دئ د احمد **فاني** په زړه کې ستا د مینې
په سترګو کې مي ګوره فوارې دي سپیني ښکلي

*****

نوراحمد قرآنمل

# مناجات

خدایه ستا و رضایت ته زیات سپاس را
په ازمون د بندګۍ کې مې سر پاس را

چې توانګر سم په خدمت ستا د مخلوق کې
رانه لیرې د خناس د ترس وسواس را

سترګې کښته په حیا ستا په شکران کې
د غفران زېری له ورایه څخه پاس را

قند نبات چې د پېغمخو زړه مجاز وړي
دې دنیا کې له همغو نه ایاس را

پل پر پل مې د جانان د قدمو کړې
**قرآنمل** ته د ایمان د لار اساس را

نعمتي

## غزل

نور د رب چې مې و زړه ته یو وار راسي
لکه پاڼه رپېدل مې په کار راسي

د زړه کب مې د دې نور په سیند کې غرق سي
د امید او وېرې گډ غوندې ښار راسي
ستا په فضل مې د شپې و غره ته شا ده
په کرم دې پر ما بیرته سهار راسي
خدایه ستا ښکلي خدایي ته مې خیال یوسي
او ښکې توی کم ستا پر خوا مې قرار راسي

ییلي پښې ځیري گرځوان **نعمتي** گرځي
چې پر څنگ مې ستا د ښکلو مزار راسي

---

حاجي غلام نبي سعید

## غزل

د زړه خبره مې کول ته نه وې
ومه د میني په تکل ته نه وې

په ځوانو ځانگو غوټۍ وغوړېدې
وړمه د هیلو نښېدل ته نه وې

چې ښکلا ناز پر بدرنگیو کاوه
سترگو په تا پسي کتل ته نه وې

هسي وه گرمه هنگامه د ژوندون
یادونه تلله او راتلل ته نه وې

اصیل وختونو څه پایښت ونه کړی
بدل حالاتو کړم بدل ته نه وې

س. وطنیار

## غزل

زه چې په شپه کې خاموشۍ سره تنها ږغېږم
له یوې نوې زندگۍ سره تنها ږغېږم

زه چې اسمان ته گورم ومنه چې تا گورمه
زه په سپوږمۍ کې له سپوږمۍ سره تنها ږغېږم

ذره ذره وجود راټول کړم د دوی مخ نیسمه
خو دوی راته منلي چې دوی سره تنها ږغېږم

اې **وطنیاره** - یاره دواړه شاعران کړلو عشق
ته غزلبول یې زه لنډۍ سره تنها ږغېږم

---

اخترمحمد رنځور

## د اختره څه گیله

اختره راغلې بیرته ولاړې مونږ خپه پاته سوو
ځولۍ مو تشه بس له تا څه پر گیله پاته سوو

زمونږ امیدونه د کچکول د ښنده وتښتېده
د خس او خار تر منځ سوځېدلي دي ایره پاته سوو
داسي هم نه وه چې مو زړونه له ډبري وه جوړ
لمبې کړه ویلي لکه شم خالي سینه پاته سوو
د بې رحمۍ لمن د گل پر خندا وغوړېده
د زړغونې پاڼې و شا ته بېگانه پاته سوو
څنگه خوږه پیاله و مخ ته د ترخو ورغله
مونږ وو خواږه ستا په نظر ولي ترخه پاته سوو
مستي تحفې د گل غنچې دي پر مونږ نه وې پېرزو
په بل دي نوش کړه مشروبات مونږ وچه خوله پاته سوو
زمونږ د نظر اسمان پر مخ توري وریځې راوړې
د او ښکو څاڅکو ته مو سر پر گرېوانه پاته سوو

دوستان مو دي ړانده په سترگو خو د ښمن دې بینا
وایي **رنځور** اخترمحمد چې وو هغه پاته سوو



د هدايت الله هدايت ليكنه او څېړنه

# د نړۍ د وتلو رسنيو او ورځپاڼو پېژندنه

(۲)

## د هندو ورځپاڼه

THE HINDU

(هندو) *(The Hindu)* په هند کې د انګرېزي ژبې له ډېرو مهمو ورځپاڼو څخه شمېرل کېږي. دغه ورځپاڼه د ۱۲۵ کالو قدامت په درلودلو سره په هند کې د تېراژ له پلوه تر ټايمز آف انډيا او هندوستان ټايمز ورځپاڼو وروسته دريم مقام لري. (هندو) په ۱۸۷۸ کال کې د سوبرامانيير له خوا تأسيس سوې ده او د خپرېدو او توزيع لوی مرکزي دفتر يې د هند په جنوب چيناى (مدراس) کې واقع دئ.

د (هندو) ورځپاڼه بيا را وروسته يعني په ۱۹۰۵ کال کې د کتهسوري اينګر له خوا چې د ۱۸۹۵ کال راهيسې د دې ورځپاڼې حقوقي مشاور وو، رانيول سوه. د هغه کورنۍ تر دا اوسه پورې پر دغې ورځپاڼې باندې خپل مالکيت ساتلی دئ.

د (هندو) ورځپاڼې بنسټ اېښودونکو د خپلو خپرونو لپاره دوه عمده او بنيادي پرنسيپونه د خپلې لارې

مشال گرځولي وه، او هغه دا چې تل به د
حق، عدالت او انصاف پلوي کوي.

دغه ورځپاڼه د خپل تأسیس په لومړي پړاو کې د اونیزي په توګه خپرېدله، خو په ۱۹۸۹ کال کې په ورځپاڼه واوښتله. د دغې ورځپاڼې ورځنی تیراژ نن سبا تر یو میلیون زیاتو نسخو ته رسېږي چې د کاله څه باندې ۸۰ ملیونه ډالره خرڅلاو لري.

د (هندو) ورځپاڼه د هند لومړنۍ ورځپاڼه وه، چې په ۱۹۹۵ کال کې یې په الکترونیکه توګه خپلې خپرونې پر لیکه کړې.

نن د (هندو) ورځپاڼه په هند کې د هغو مشهورو او بااعتبارو ورځپاڼو په کتار کې راځي چې خپرونې یې د خلکو پر ذهنیتو باندې ډېر ژور تأثیر کوي، دغه ورځپاڼه د دې هیواد د درو لوړ شمېرو لوستونکو په ډله کې حسابېږي. د (هندو) ورځپاڼه د انګرېزانو د استعماري حکومت په دوران کې د هند د خپلواکۍ د منادیانو د ورځپاڼې په نامه یادېدله، خو دغه دنده یې په سره سینه او پرته له دې چې حساسیتونه را وپاروي، په آرامۍ سره پر مخ بېوله. د (هندو) ورځپاڼې د هماغه لومړنیو شېبو څخه پر هند باندې د انګرېزانو د ظالمانه حکومت په وړاندې مخالف دریځ غوره کړی وو، خو دغه دریځ یې هومره سخت نه وو چې ماجراجویي دي را وپاروي. اوس هم د هند خلک و (هندو) ته نه یوازې د یوې وتلې ورځپاڼې په سترګه ګوري بلکې (هندو)، د هند د اولسي ارمانو د انعکاس یوه هینداره ګڼي او خپرونې یې د خلکو پر افکارو باندې ډېر ژور تأثیر ښندي.

له ۱۹۴۷ کال راوروسته، کله چې هند خپله خپلواکي تر لاسه کړه، نو (هندو) په ټول هند کې د خپلو دفترو له پراخولو سره یو ځای د هند په بهر کې هم خپل دفترونه وپرانیستل تر څو د هندوستان د کورنیو خبرو تر څنګ بهرنیو خبرونو ته هم د انعکاس زمینه برابره او هغه ته لاره هواره کړي.

د (هندو) ورځپاڼې د خپل نشراتي دوران په بهیر کې وکولای سو ه چې په تدریج سره له هیڅ یوه لوري سره خوا ونه نیسي او د طرف نیولو یا مخالفت پرته، داسي یوه شېوه (طریقه) خپله کړي چې نه یوازې د خپل مخاطب له نظره، بلکې د مطبوعاتو د کارپوهانو او ناظرانو له نظره هم (هندو) په هندوستان کې تر ټولو یوه خپلواکه او آزادخیاله ورځپاڼه وګڼل سي. خو دغې رویې د ۱۹۸۰ لسیزې په وروستیو کې بدلون وموند. د دې لسیزې په آخرو کلو کې د (هندو) مالکیت د هغې د کورنۍ د ځوان نسل د غړو په لاس کې ولوېد. دغه د مالکیت انتقال د دې ورځپاڼې په سیاسي دریځ کې هم یو برآلا بدلون راووست. نوموړې واقعیت هومره څرګنده وو چې د worldpress.org غوندي نامتو انټرنیټي شبکو د (هندو) ورځپاڼه و کینې اړخې ته د متمایلو ورځپاڼو په کتار کې ودروله.

د (هندو) ورځپاڼه هم لکه زیاتره نوري هندۍ خپروني د موروثي مالکیت شکل لري. له ۱۹۶۵ کال څخه بیا تر ۱۹۹۱ پوري د دې ورځپاڼي مشرتوب د جی. کستهوري درلود او د ۱۹۹۱ څخه بیا تر ۲۰۰۳ پوري، درا. ان روي او د ۲۰۰۳ جون د ۲۷ می څخه د آر. ان رام پر غاړه ولوېد.

د ۱۹۸۰ لسیزی په وروستیو کي (هندو) ورځپاڼي په فدرال دولت کي د هغه فساد په رسوا کولو کي محوري نقش ولوباوه چي د دولت په دننه کي یې رخنه کړې وه. دغي ورځپاڼي د ملي ګټو د اولویت د دفاع په روحیه په خپلو مستندو ګذارشونو کي په دولت کي په فساد ککړ لاسونه او مدرکونه په مفصله توګه خپروله. همدا وجه وه چي د هغه وخت حاکم ګوند په راتلونکي ټولټاکنو کي ماتې و خوړله.

د ۲۰۰۵ کال په اکتوبر کي (هندو) لومړنۍ ورځپاڼه وه چي د ولکر په کمیټه کي یې د پیدا سوو مدارکو په خپرولو لاس پوري کړ. دغه مدارک له هغو ادعاوو سره تړاو درلود چي و عراق ته یې د ملګرو ملتو د تېلو په بدله کي د غذا په برنامه کي د فساد او رشوت درز رسوا کړ. له دې رسوایۍ وروسته وه چي په هند کي پراخ تحقیقات تر سره سول او د هند د هغه وخت د بهرنیو چارو وزیر نټوار سینګهـ په دغه رسوایي کي د لاس درلودلو په خاطر تورن سو.

د خبرو او ګزارشو په وړاندي کولو کي د (هندو) ورځپاڼي دقت او ظرافت بې مثاله دئ. په دې ورځپاڼه کي د هر اړخیزو ګذارشونو خپرېدل خاص ځای لري. هغوی دغه ګزارشونه د ټولو ثقه منابعو او اخځونو سره یک په یکه وړاندي کوي. د نړۍ والو او کورنیو موضوعاتو په راسپړلو او هوارولو کي او همدارنګه د عناوینو په ټاکلو کي د (هندو) د خپروني ځانګړتیاوي د دې ورځپاڼي وړتیا ته لا نوره هم جاذبه ورکوي.

د ګرافیکي فورم د لحاظه د (هندو) ورځپاڼه د هند د نورو ورځپاڼو په پرتله زیاته سخت ګیره ده او د پخوانیو اصول او قواعدپالي، په دې توګه د دې ورځپاڼي په لومړي مخ کي د اعلاناتو خپرول لا تر اوسه پوري د زیاتو ضوابطو تابع دي.

سره د دې چې د (هندو) ورځپاڼه د خپل ایالت په مرکز کي چاپېږي خو دغي ورځپاڼي ته هیڅکله د یوې داخلي او یا ولایتي ورځپاڼي په سترګه نه کتل کېږي، بلکي هر ځای هم د هند په پایتخت او هم ترهغه بهر د یوې اصلي ورځپاڼي په توګه د زیاتي پاملرني او توجه وړ ده.

په (هندو) ورځپاڼه کي و خبر ته ځانګړې اهمیت ورکول کېږي. داسي هڅه کېږي چي د هند هیڅ یو کوچنی خو مهم خبر دي له قلمه ونه لوېږي. نن په هند کي هر څوک چي د تېري ورځي په پېښو ځان خبروي نو په (هندو) ورځپاڼه کي پسې ګرځي او هلته یې پیدا کوي چي دا د دې ورځپاڼي لویه لاسته راوړنه ده. همدا وجه ده چي نن (هندو) ورځپاڼه په هند کي د ډېري درنې ورځپاڼي په حیث پېژندل سوې ده.



**لیکوال: کاندید اکاډمیسین سیستانی**
ژباړه: رحمت آریا



# افغان شاه محمود - د اصفهان بریمن

## د افغان شاه محمود پاڅون او د ایران د صفوي دولت پرځېدنه*

دوهمه برخه

* * * * *

### د شاه محمود پاچهي په ایران کي:

څرنګه چي مخکي مو ورته نغوته وکړه، کروسینسکي د اصفهان د کلابندۍ پرمهال په هغه ښار کي وو او د وګړو زړه بوږنوونکی اکربکر يې په خپلو سترګو لیدلی او کله چي محمود اصفهان ته نږ نوموړي له محمود غلزایي سره څو

ځله لیدلي هم دي او د محمود د چال چلند انځور په لاندي ټکیو کي راکاږي:

"هغه منځقدې ونه درلودله، اوږې يې پلني وې، ټيټه پزه او پلن مخ يې وو، تېرې سترګي يې وي، تونده کاته يې درلودل، لنډه غاړه او سره کوسه ږيره يې وه. هر سهار به يې د خپلو بولندويانو په منځ کي تر ټولو پیاوړي بولندوی سره

غیږي نیولې او پاته ورځ به یې په نورو ورزشونو چې د هغه ځان ته یې لا پیاوړتیا وربخښله تیروله. په ورځ کې به یې پنځه له پښو تړلي پسونه ورته راوړل او هغه به پسونه په خپلې توري دوه نیمه کړل. هغه په شلګر "نیزه" اچونه کې ډېره پخه ورهڼه (مهارت) درلودله او هیڅکله یې نښه بې ځایه نه منښتله. پر اس د سپرېدلو په وخت کې دومره چابک وو چې د سپرېدلو په وخت کې به یې په کیڼ لاس اس له ورږ "یال" ونیو، ښی لاس به یې د اس پر ملا کښیښود او پرته له زین او رکابه به په ټوپ پرې سپور شو. په کور کې په زین سپرېده. ډېر لږ بیدېده او کله به چې یوې خواته له لښکر سره تلی هیڅکه پر بستر نه بیدېده. د شپې له پلوه په خپله پر ساتونکو ګرځېده او د هغوی خبر به یې اخیست او په اصفهان کې پلی ګرځېده. په خوراک کې یې اعتدال کاوه هر څه یې چې لاس ته ورتلل نو پر هماغه به یې بَسنه او قناعت کاوه، شراب یې نه څښل، له خپلې ماندینې د سلطان حسین له لور پرته چې له هغې یې یو زوی درلود، له بلې ښځې سره پرې نه ووت. شاه محمود د ځانخوښي، عیاش او نري زړي شاه حسین برخلاف، فعال، پیاوړی او غښتلی وو او په پور وژنه (قصاص) کې هیڅ چا خپل مخ (شفاعت) نه شو وروړای او د چا زاری او التماس یې نه منل او د شریعت حکم یې پلی کاوه او د خپل دښمن په اړه ډېر سخت زړی او غچ اخیستونکی وو. د جګړو پر مهال د لښکر په لومړۍ لیکه کې درېده[۳]. شاه محمود درې کاله په ایران کې پاچهي وکړه (۱۷۲۲ – ۱۷۲۵ز).

په لومړیو کې هغه د ښه چال چلند لرونکی او منځدریځی وو. د ایران د پاچهۍ پر ګدۍ د هغه لومړنی کار د هغه انساني ګام، د اصفهان سوکړه (قحطۍ) ځپلو وګړو ته د خوراکي توکو برابرول ول. د خپلې پاچاهۍ لومړۍ میاشتې یې د منځلاري د دریځ په راغوره کولو چې ایرانیان یې هک پک کړل تیرې کړې. هغه دومره هوښیار وو چې د صفوي پاچهۍ د پېچلې اداري ټولې چارې یې په لنډ وخت کې وپېژندلې او پوه شو چې افغانان په دغه لومړني پړاو کې د دغو پېچلو چارو د راخپلولو کارپوهنه او وړتیا نه لري نو له دې امله یې پخواني ایراني لوړپوړي ماموران او وزیران بیرته په خپلو کارونو وګومارل او د هر یوه تر څنګ یې یو افغان وټاکه. د همدغې پوهې په اړانه کې افغانانو ته د اداري د چارو د پرمخ بیولو لپاره د زده کړې لاره پرانیستل شوه. افغانان په ځیر د ایرانیانو کار څاره چې په فساد او ککړتیا لاس پوري نه کړي او بدې وانخلي او په پای کې د محمود د پاچهۍ لومړۍ شپې ورځې دومره ښې تیرې شوې چې ساری یې په تیره نیمه پېړۍ کې نه وو لېدل شوی.

شاه محمود هغه کسان چې پخواني پاچا او هېواد ته یې خیانت کړی وو او د افغانانو په ګټه یې ورته څارګري کړې وه یا اعدام کړل او یا یې زندان ته واچول او د




هېواد خائنانو ته يې تلپاته درس ورکړ.
هغه په برالا ويل له هغو کسانو څخه چي
پاچا او يا خپل دولت ته يې خيانت کړی نه
شي کولای د بښګڼي هيله ولري او که

وخت له دغو څارګرو وغواړي او يا اړتيا
پېښه شي نو د ده په وړاندي به هم ورته
خيانت وکړي[۳۱].

ورسته له هغه يې جارچي ته

لاربښوونه ورکړه چې ايرانيان په ځانګړې توګه د اصفهان وګړي دې له افغانانو سره د کتنې په وخت بايد له خپله ځايه ودرېږي او پر خپلو ټټرونو د لاس ايښوونې له لارې دې د هغوی درناوی وکړي. د درناوی دغه ډول لا تر اوسه د افغانستان په افغانانو کې دود دئ او د هغوی د ژوند او فرهنګ يوه برخه ده.

د هغې تر څنګ محمود ټولنيزې پاړکي (طبقې) پر اوو ډلو ووېشلې چې افغانان د سوبمنو په توګه په لومړی کچه او ماته خوړلي مغلوب ايرانيان يې په اوومه کچه کې را وشميرل او دا چال چلند د ايران د هغه چال چلند په کړس کې وو چې شل کاله مخکې د سوبمن ايران لښکريانو د کندهار او هرات د وګړو په حق کې کړی وو.

په دغو شپو ورځو کې د ايران په دوه ګوندېو ناست دښمنان د ستر پيطر تر مشرۍ لاندې روسيه او بل يې عثماني ترکيه، ايران ته د پياوړي ګواښ په توګه ګڼل کېدل. پيطر تر ټولو ستر ګواښ ګڼل کېده ځکه چې د (دربند) مهم ښار يې په لاس کې وو. په دغسې شپو ورځو کې شهزادګي طهماسب صفوي چې مخکې له اصفهانه تښتېدلی وو د ۱۷۲۳ ز کال = ۱۱۳۵ هجري کال د محرم په ديرشمه نېټه په قزوين کې خپله پاچهي اعلان کړه. که څه هم دغه پېښه په څرګنده جګړې ته د افغانانو د راکاږلو مانا ښندله خو د ډېرو او بې کفايتو وزيرانو په هڅونو ډېر ژر په بډ ونو. لهو، لعب، عيش او عشرت کې ډوب او په اصفهان کې د خپل کور له ژغورلو څخه ليري او بې خبره پاته شو.

شاه محمود د خپل اکا زوی اشرف، اعتمادالدوله او امان الله خان د يوه ۳۰۰۰ کسيز لښکر په سرمشرۍ کې له شهزادګي طهماسب سره د جګړې لپاره قزوين ته وليږل خو شهزادګی پرته له دې چې له افغانانو سره مقاومت يا جګړه وکړي، له قزوينه کاشان ته او له هغه ځايه آذربائجان ته و تښتېد او قزوين پرته له جګړې او مقاومته د افغانانو منګولو ته ورَغی. په لومړيو کې ولس افغانان په وَرين تندي ومنل خو سوبمنو سرتېرو ونه شو کولای چې د وګړو او د هغوی د شتمنيو او ناموس په وړاندې د ناوړه چال چلند او تاوتريخوالی مخه را ونيسي. له دې امله ولس د افغانانو له دغه چلند څخه تر دوو سوړمو را ورسېد او پاڅون ته يې لاس واچاوه.

د دغه پاڅون په ترڅ کې هر قزويني خپل افغان مېلمه وواژه او په دې ډول د افغان لښکر يو شمېر سرتېري د بې خبرۍ په منګولو کې راښکېل او ووژل شول. امان الله خان هم ټپي شو خو ډېر ژر يې خپلو پاته ځواکونو ته لارښوونه وکړه چې ځانونه د ښار ارګ ته را ورسوي او له هغه ځايه دې په مقاومت لاس پوري کړي. افغاني ځواک د امان الله خان لارښوونه ومنله او ځانونه يې ارګ ته راورسول او همدغه چاره د هغوی د ژغورنې لامل شوه. له دې چې په ارګ کې خوراکي توکي مخ پر خلاصېدلو ول امان الله

پرېکړه وکړه او لارښوونه یې ورکړه چې د توري په زور دې د پاڅونوالو لیکې ورماتې او ځان ته دې د بهر وتنګ لاره پرانیزي. افغانانو همداسې وکړل خو د ډېرو درندو تلفاتو په ورکړنګ (څه ناڅه ۱۲۰۰ تنه ووژل شول) او پاته سرتېرو وکولای شول چې له ښاره دباندې ووزي. یو شمېر سرتېري د کاشان پر لور ولاړل او هلته یې د اشرف تر مشرۍ لاندې ډله جوړه او کندهار ته ولاړل او بله ډله د امان الله خان تر مشرۍ لاندې سترې او ستومانه اصفهان ته راستنه شوه[۳۲].

د دغې پېښې خبر پر شاه محمود ډېره بده اغېزه وښیندله او لارښوونه یې ورکړه چې د اصفهان ټول وزیران او مخور چې شمېر یې درو سوو تنو رسېده ماښې ته دې راوستل شي او بیا دې له چړو تېر شي. دغه پرېکړه د دغو ټولو بې ګناهو کسانو په حق کې پلې شوه او له هغې ډلې یوازې اعتمادالدوله محمد قلي د دوو تنو غلجیو په مخ ژوندی پاته شو او پاته نور ټول له چړو تیر شول او د وژل شوو کسانو مړي د ښار په واټونو کې خلکو ته په ننداره کېښېښودل شول. محمود لا په دې بسنه ونه کړه او د هغوی د زامنو او یو شمېر قزلباشو د وژلو لارښوونه یې هم ورکړه او دغې چارې په اصفهان کې داسې وېره خپره کړه چې تر ډېرې مودې چا له وېرې له خپله کوره د راوتنګ زړه نه درلود او چا اجازه نه درلوده چې ښار ته خوړ کې توکې راوړي او په پای کې اصفهان له لوږې او قحطۍ سره مخامخ

شو. که نصرالله زرتشتي اصفهان ته خوراکي توکي نه ول را رسولي نو هیڅ شک نشته چې د پاچا د پرغزناکۍ او قهر له امله ډېر وګړي مړه کېدل.

نصرالله زرتشتي د ۳۰۰۰ کسیز لښکر په مشرۍ کې د اصفهان په شمال غربي سیمه کې د خوراکي توکو په را ټولونګ لاس پورې کړ او دغه چاره یې په ډېره ښه توګه سر ته ورسوله او "پنځوس زره په اوښ بار" خوراکي توکي یې پلازمېنې ته راولېږل د همدان په شمالي او شمال ختیزو سیمو کې یې سني مذهب ته د را اووښتو څلور زره کورنۍ وهڅولې چې اصفهان ته کډه وکړي او هلته په اصفهان کې دیره شي[۳۳]. د نصرالله زرتشتي زامن د اصفهان له سوبې وروسته سیستان ته ستانه شول او له ۱۲۰۰ افغاني او زرتشتي کورنیو سره له سیستانه اصفهان ته را کډه شول.

په دغو شپو ورځو کې افغان سرتېرو چې د جګړې د ولجې د راټولو له امله هوسا ژوند موندلی وو خپل مورنې ټاټوبي ته د ستنېدلو په هېله شول او د هغوی یو شمېر د کندهار پر لور وخوځېدل. شاه محمود د افغانانو بیرته ستنېدنګ د ځان او په اصفهان کې د نورو میشتو افغانانو په وړاندې د یوه راتلونکي ګواښ او خطر په توګه وګاڼه او د دې لپاره چې د سرتېرو د تېښتې مخنیوی وکړي نو لارښوونه یې ورکړه چې د هغوی کورنۍ دې اصفهان ته را ستنې کړای شي. کندهار ته اته زره اوښان ولېږل

شول او په کندهار کې نور اوښان یې هم راټول کړل چې د افغان سرتېرو کورنۍ اصفهان ته راستنې کړي. د کروسینسکي په وینا: "لومړنی کتار له دېرش زرو اوښانو څخه جوړ وو چې وروسته له درو میاشتو مزل اصفهان ته راورسید. په راتلونکو دوو کلنو کې نور کډوال هم اصفهان ته راغلل خو بیا هم د اصفهان د وګړو د لړوالي تشه یې ډکه نه شوای کړه. وروستنی کتار د شاه محمود د ژوند په وروستیو شپو ورځو کې راورسېد چې له درو زرو اوښانو څخه جوړ وو او د شاه محمود مور هم له همدغه کتار سره اصفهان ته راغله"(۳۴).

شېراز دویم ښار وو چې باید نیول شوی وای. د ۱۷۲۳ز کال د دوبي په وروستیو کې ړوند نصرالله د دغه ښار نیولو ته وګومارل شو. هغه د شېراز تر کرښو پرته له مقاومته پر مخ ولاړ خو کله چې شېراز ته ورسېد د هغه ځای واکمن مقاومت ته ملا وتړله. نصرالله د سترګو په رپ کې د لښکر د سرمشرۍ په مخکښۍ لیکه کې ودرید او لښکر ته یې د یرغل بولنده ورکړه. خو دغه زړه ور سرلښکر لومړنی تن وو چې د شېراز د ښار د ساتونکو غشي یې پر تېر ومښت او په خارو کې راپرېووت. د نصرالله مړینه د لښکریانو د ناورین او ویر لامل شوه او محمود د هغه مړینه نه سکینده "جبران" کېدونکې وبلله. ځکه چې هغه د محمود د لښکر یو تر ټولو بریالی سردار وو.

ارمنیان په ځانګړې توګه زرتشتیان د خپل ستر مشر نصرالله په مړینه کې ډېر وکړېدل. ان د اصفهان وګړو هغه یې د یوه زړه سواندي او سختې ګالونکي مشر په توګه وګاڼه او د هغه د مړینې له امله ډېر خواشیني شول. پولنډي کشیش کروسینسکي په خپلو یادښت لیکونو کې لیکي چې زرتشتي نصرالله د پراخ زړه او ورین تندي خاوند وو. یو شمېر ګرجیان چې پاچا ته یې خدمت کړی وو دې ته اړ شول چې اسلام ته را واوړي خو نصرالله هغوی ته اجازه ورکړه چې بیرته خپل لومړني دین ته ور واوړي او ان له اصفهانه یې هغوی ته ګرجي کشیش ور ولېږه.

کروسینسکي زیاتوي چې هغه دغه کار "عیسویت ته د لیوالتیا له امله نه کاوه بلکه هغه یې له شیعه مذهب څخه د کرکې په کرس کې کاوه"(۳۵).

د نصرالله خان زرتشتي تر مړینې وروسته د شېراز د نیونې لپاره د افغاني ځواکونو مشري افغان زبردست خان په لاس کې واخیستله او وایي چې: زبردست خان "ډېر زړور او بې وېرې جنګیالی وو" او له همدې امله یې د هغه ښار ټینګې کلابندۍ ته ملا وتړله او کله چې ښار ورتسلیم شو نو د شېراز د وګړو په وړاندې یې له ډېرې زړه سواندۍ کار واخیست. له دې چې سوداګرو او شتمنو کسانو وګړو ته د خوراکي توکو له ورکړېنګ څخه ډډه کړې وه او یو شمېر بېوزلي وګړي د لوږې له لاسه مړه شوي ول نو زبردست خان لارښوونه ورکړه چې د ښار ټولي هتۍ او

خوراک پلورنځي دي پرانیستل شي خو
هیڅ چا اجازه نه درلودله چې له ځان سره
وسله وګرځوي. په ډېره لنډه موده کې د
ښار اکریکر عادي شو او شېراز ته له هره
ګوټه خوراکي توکي راوړل شول او وګړو
وکولای شول چې د خپلو ورځنیو اړتیا
توکي را ټول کړي. د ناصرالدین شاه د
استخباراتو وزیر یو تاریخ لیکلی او
تاریخ منظم ناصري نومېږي، په هغه کې
راغلي دي چې:

"زبردست خان د شېراز وګړو ته
سوله راوړله، یو ورځ یې ناڅاپه یرغل
وکړ، شېراز یې ونیو او (وګړي) یې له
وژلو منع کړل. کله چې ښار ونیول شو ویې
لېدل چې څو تنه له لوږې مړه شوي ول. یوه
سوداګر په کور کې دومره غنم درلودل چې
د ټول شېراز د ښار د وګړو لپاره په میاشتو
میاشتو بس ول. زبردست خان له سودا
ګر څخه پلټنه وکړه او هغه یې بندي کړ.
هغه وویل: ولې دې دغه غنم پر بېوزلو ونه
وېشل او پرې دې ښودل چې وګړي له
لوږې مړه شي"(۳۶). یوه ورځ یوه ارمني
سوداګر شاه محمود ته ورغلی وو چې د
هغه سره زر او د الماسو دوې غوټې یې د
اصفهان او هندوستان په لاره کې ورڅخه
غلو لوټ کړي دي. شاه محمود د ارمني
سوداګر پر غوښتنې لیک زبردست خان ته
ولیکل چې د سوداګر مال دې پیدا او
څښتن ته دې ور وسپارل شي. زبردست
خان د دې لپاره چې په ایران کې د افغان
پاچاهی د توري شرنګ راښکاره کړي
وې هڅه وکړه چې غلا شوی مال ومومي
او هغه بیرته د هغه څښتن ته ور وسپاري.
دا په خپله څرګندوي چې زبردست خان د
دسپلین څښتن او یو انضباط لرونکی
واکمن وو پرته له هغه د ارمني سوداګر د
مال موندنه ناشونې ښکارېدله. "ګوربت،
څلورمه ګڼه، پنځم کال، پ ۵، د ښاغلي
حداد په قلم د زبردست خان په اړه مقاله".

د شېراز د ښار نیونه شاه محمود
خوښ او د ایران د نورو ښارونو نیولو ته لا
هیله من کړ. له دې امله کله چې زبردست
خان د [لار] او بندرعباس د سیمو په
پرانیستلو بوخت وو، شاه محمود په خپله
د یوه لښکر په مشرۍ کې د اصفهان د
لوېدیځ په سل مایلي واټن کې پر
ګلپایګان یرغل وروړ او هغه یې د یوې
لنډې جګړې په ترڅ کې ونیو او بیا د
زاګروس د غرونو د لړۍ په لس مایلي
واټن کې د خونسار پر لور وخوځېد او هغه
ځای یې هم ونیوه وروسته د زبردست خان
په مرسته یې کاشان ونیو او بیرته اصفهان
ته را ستون شو.

دغو ښار نیونو د شاه محمود د
واکمنۍ په پراختیا کې پاچا ته هیڅ ډول
ډاډ نه ور په برخه کاوه نو له دې امله د یوه
لښکر په مشرۍ کې ودرېد او غوښتل یې
د ګیلویه د غره په لمنو کې پراته توکمونه
د خپلې واکمنۍ تر سیوري لاندې راولي.
خو پرته له دې چې کومه سوبه او بریا ور
په برخه شي د سیمې له جغرافیې سره
نابلدۍ او د ژمي سړښت د شاه محمود
لښکر ته ډېر تاوانونه ورواړول. محمود له
دغه بې ګټې تاوان څخه ډېر خواشینی وو.

په همدغه شېبه کي د شاه محمود د دولت یو پیاوړی او اغېزمن مشر امان الله خان د شاه محمود د خپل سریو او استبدادي کړنو او یا د وَلجو د وېشنګ له امله خواشیني شو او له خپلو ځواکونو سره له اصفهانه د کندهار په لور ووت. امان الله خان هم د پاچا سلطان حسین له یوې لور سره واده کړی وو او له دې امله د شاه محمود نږدې خپلوان ګڼل کېده.

کروسینسکي د امان الله خان د غه ګام د شهزادګۍ (د هغه ایرانۍ میرمن) د پارَونو له امله بولي او له دې چي د امان الله مېرمن د شاه محمود او د هغه د ماندینې تر منځ له اختلافاتو خبره وه وایي چي: " د ۱۷۲۳ز کال د لسیزي په لومړیو کي امان الله د پاچهۍ تاج را پورته کړ او له خپلو سرتېرو سره له اصفهانه ووت او د کندهار پر لور وخوځېد، خو د لاري په منځ کي پرته له دې چي خپله موخه او هدف چا ته څرګند کړي د طهماسب تر ولکې لاندي سیمو ته یې مخه واړوله" (۳۷).

هرګوره دغه ګام شاه محمود دومره عصبي کړ چي په بېړه د ډېر اوږده مزل په وهلو امان الله پسي ورغی او کله چي هغه یې وموند د خپل اس له سره راکوز شو او هغه یې په غېږ کي ونیو او د هغه ټولي غوښتني (د واکمنۍ او ولجو د وېشني په ګډون) یې ومنلې او د افغانانو د دود پر بنسټ یې د تورکښ "عسکریت" په تورو سوګندونه وخوړل او لوړه یې وکړه او خپله پخوانۍ دوستي یې راژوندۍ کړه او بیا شاه محمود خپل اس امان الله ته ورکړ، چي د هغه پر آس سپور شي او په ټول پرتم دي بیرته اصفهان ته راستون شي.

کروسینسکي لیکي چي: "امان الله خان له کابله کندهار ته راغلی وو او له محمود سره یې ملګرتوب راخپل کړی وو. هغه هوښیار او یو پیاوړی ازمویل شوی جنګیالی وو. نوموړی ډېر مدبر شوی وو او په اصفهان کي د محمود د ګام د ټینګښت لامل هم دی وو"(۳۸). شاه محمود، امان الله خان سر وزیر (اعتمادالدوله) جوړ کړی وو.

یوځل شاه محمود امان الله خان ته ویلي ول چي زړور او پیاوړی جنګیالی اشرف دي له کندهاره بیرته را وغواړي او د هغه درنښت دي پر ځای کړي. شاه محمود له ناچارۍ اشرف له کندهاره راوغوښت او ظاهراً د هغه درنښت یې کاوه خو په زړه کي ورڅخه خوښ نه وو ځکه چي لښکریانو اشرف ته ډېر درناوی درلود. له کندهاره د امان الله له راتګ وروسته، شاه محمود د هغه په وړاندي خپل ډاډ له لاسه ورکړی وو او په دې ترڅ کي له دوه تنو لوړ پوړو او د درنښت وړ افغانانو څخه یې کرکه کوله او له هغو بېرېده او دغو دواړو دوستانو هم محمود ته په زړه کي په ښه سترګه نه کتل.

په همدغسي شپو ورځو کي شاه محمود ته خبر را ورسېد چي د افغانانو یو کتار کله چي له کندهاره د اصفهان پر لور را روان وو د یزد د وګړو تر یرغل لاندي راغلی، کتار یې لوټ کړی او په کتار کي د ۲۰۰۰ په شا او خوا کي ټول افغانان وژلي

دي. شاه محمود د ۱۷۲۴ ز کال د نوامبر په
میاشت کي د یزد له وګړو څخه د غچ
اخیستلو په موخه د یوه لښکر په مشری
کي د یزد پر لور وخوځېد. خو په دغه برید
کي بریا ور په برخه نه شوه او لښکر یې
ډېر تاوان ولید. د لښکر مشرانو د دغه
پاته راتلنګ او ناکامی لامل د محمود پر
غاړه واچاوه او په پای کي یو شمېر
سرتېري او افسران د کندهار پر لور
وخوځېدل.

دغو پېښو د شاه محمود پر اعصابو
دومره زور راوړ چي خپله په وېره او د
اعصابو په ضعف اخته شو. له خوړښت
پاته شو او د وېري خرخښنه "وسوسه"
پري را خپره شوه. د هغه د مرشد په ګډون د
دربار نږدو کسانو د محمود دغه حالت د
خدای غضب ګاڼه او د خدای د غضب د
غلي کولو لپاره هغه ته یې لارښوونه وکړه
چي په اعتکاف او عبادت دي لاس پوري
کړي او په څلویښتی دي کښېني. دغه
ګوتې ناسته "اعتکاف" باید په څلویښت
ورځو کي تر سره شوی وای او محمود هم
همداسي وکړل. محمود د خپل مرشد په
لارښوونه په څله ځای کي کښیناست او د
څلویښت ورځو لپاره د اسم اعظم په ویلو
یې پیل وکړ او له خوړلو، څښلو، له خلکو
سره له لیدني څخه یې ډډه وکړه. دغي
څلویښتی پر محمود ناوړه اغېزه وکړه او
هغه یې د لېونتوب لمني ته را وکاږه. کله
چي له څله ځي راووت رنګ یې الوتلی
وو. کمزوری وو، کرار او آرام یې نه درلود
او اعصاب یې ګډ وډ ول. د خپلو نږدو
کسانو په وړاندي بدګومانه وو او ګومان
یې کاوه هر څوک چي ورته نږدې کېږي
هغه وژني او تاج او پاچهي ورڅخه اخلي.
نو له دې امله خپل د تره زوی اشرف یې له
ټولو مخکي زندان ته ولېږه. په همدغسي
یوه اکړبکړ کي هغه ته خبر ورکړ شو چي د
صفي میرزا په نامه یو شهزادګی له ماني
تښتېدلی او بختیاري ته یې پناه وړې ده.
دغه خبره د یوه سټک په څېر د محمود پر
مغزو راپرېوتله او د لېوني په شان یې د
پرځېدلي پاچا پر کورنی او ماشومانو
برید وکړ او په خپل لاس یې د پاچا ښځي
او ماشومان له توري تېر کړل. وایي چي
سلطان حسین د خپلو ماشومانو د چیغو او
بغارو په اورېدلو له کوره را ووت او په
خپلو سترګو یې هغه وېروونکې پېښه
ولېدله. پاچا خواست او زاری وکړې او
خپل دوه تنه زامن چي لاسونه یې شا ته
تړل شوي ول د دُرنه مار "جلاد" له منګولو
راخلاص کړل او د پلار غېږې ته ورغلل.
محمود پر هغوی برید وکړ خو پاچا سلطان
حسین خپل دواړه لاسونه ونیول. توره د
هغه پر لاسونو راپرېوتله او ټپي شو.
محمود د خپلي مېرمني د پلار د وینو په
لېدلو پر هوښ راغی او د هغه د دوه زامنو
له وژلو څخه یې ډډه وکړه. خو دغه دواړه
هلکان دومره بېرېدلي ول چي په بله ورځ
دواړه یې مړه شول(۳۹).

د دغې وېرونکي پېښي اغېزو
محمود ته سمي پایلي نه درلودلې. ځکه
چي دغي پېښي له هغه څخه د پوهي او
عقل وروستنی. نښي واخیستلې ان دا چي

د خپل ځان په غوښو یې خپل غاښونه لګول او په ځان نه پوهېده او ټپونه یې ورو ورو عفوني کېدل. له دې چې نور شاه محمود د واکمنۍ وړ نه وو نو افغان مشران او له هغو څخه امان الله خان د هغه ځای ناستي شول. د ۱۷۲۵ ز کال د اپریل د میاشتې د ۲۲ نېټې په ماپښین امان الله خان د یوه بل افغان مشر په ملګرتیا، اشرف له زندانه راخلاص کړ او د ۷۰۰ یا ۸۰۰ تنو سرتېرو په مشرۍ کې د پاچهي د ډګر پر لور وخوځېدل. کله چې د پاچهۍ ډګر ته ورسېدل د پاچهۍ پر ماڼۍ یې برېد وکړ او د پاچهۍ ساتونکي ځواک "ګارد" له لږ مقاومت وروسته ور تسلیم شو او اشرف د سترګو په رپ کې ماڼۍ په خپله ولکه کې راوستله او شاه محمود یې زندان ته واچاوه. له درې ورځو وروسته محمود یا د ناروغۍ یا د پټې وژنې له امله په زندان کې مړ شو او د محمود له مړینې وروسته د اشرف د پاچهۍ خبر خپور شو (۴۰).

د محمود مُهر سجع داسې وه:

دولت سلطان حسین نابودشد

شاه ایران عاقبت محمودشد

ژباړه: د سلطان حسین پاچهي وپرځېدله محمود د ایران پاچا شو.

## شننه او جاج اخیستنه:

د هیواد د تاریخ د دغې لړۍ له لوستلو ورسته دغې پایلې ته رسېږو چې:

۱. افغانان جنګیالي او پر خپلواکۍ مین وګړي دي، که بهرنیان د هغوی پر ټاټوبي برید وکړي نو د ټېري ویراو ټپ تر یوې لنډې مودې پورې زغمي خو نه شي کولای تر آخره پورې د بهرنیو یرغلګرو پیټی پراوړو یوسي. په پای کې پر پښو درېږي او له یرغلګرو څخه د ټولو لوټماریو، بې احترامیو او سپکاوي غچ اخلي.

۲. د صفوي پاچهۍ په وړاندې د محمود له پاڅون څخه بله اخیستنه چې باید واخلو دا ده چې که څه هم شاه محمود د ایران په شان د یوه لوی هیواد د پاچاهۍ لپاره لا ډېر ځوان وو او د (کندهار له دوه کلني اداري څخه پرته) یې د واکمنۍ پخه تجربه نه درلوده خو خپل ولس ته یې په زباد ورسوله چې که د افغانستان له غرنیو لمنو څخه ځوانان وغواړي نو کولای شي د خپل سرۍ او استبداد په وړاندې د خپل سرۍ ضد پاڅون راوپاروي او کولای شي پر دښمن د بشپړې بریا تر وروستۍ پولې پورې پاڅون تر خپلو وروستیو لیکو ورسوي.

۳. په دغې شننې کې د یادولو وړ بل ټکی دا دئ چې ګڼې تاریخ په خپله د افغان شاه محمود پر اوږو درنده دنده ایښې وه چې د صفوي د خونړې، خپل سري او ځانخوښې رژیم د واکمنۍ لیکه ور دړې وړې کړي چې د شیعه د مذهب په رسمي کولو یې د نورو مذهبونو له لارویانو او ګروهنوالو سره کلکه دښمني را پارولې وه او داسې یوه واکمني د تاریخ کندې ته د تل لپاره واچوي چې زموږ د هیواد د سلګونو زرو بې ګناه

هیوادوالو وینه یې یوازې د غیر شیعه
مذهب په پلمه توی کړې وه. شاه محمود د
دغه کار په کولو د صفوي لړۍ د ویني
بهوونکو ، بېړو " بې کفایتو" پاچهانو
خونړۍ منګولې د میلونو زیارګالو افغان
او ایراني وګړو له ګریوانونو څخه د تل
لپاره را غوڅې کړې. د پاچهۍ داسې
خونړۍ لړۍ چې ۲۲۰ کلنه واکمني یې له
سره تر پایه په وینو تویولو، بېرحمیو،
ورور وژنو، پایلات "فساد" ، ځان
ښوونې، تګۍ او برګۍ او ځانخوښۍ
تېره شوه. داسې یو رژیم چې ژوندي
وریتول، کبابول، د سرو او خوټېدلو اوبو
په لوښو کې د انسانانو اچول، د نسونو
سوري کول، په تبرګي دوه نیمول، د
ژوندي سړي پوستول او د دښمن د خامو
غوښو خوړل، ټوټې ټوټې کول او انسانانو
عیبي کول یې له ستر نوښتونو څخه ول.
داسې یو رژیم چې پاچهانو یې د مرشدۍ
او مذهبي خدای پالنې د تېر په وهلو او د
ویني تویولو د تندې په لمبو کې ان پر
خپلو ورونو، مېرمنو، کوچنیانو او ان
خپلو میندو زړه نه سوځاوه. د صفویه د
لړۍ په راپرځولو کې د ایران ولس په
ځانګړې توګه په ایران کې مېشت لږکي د
دغو ټولو بېرحمیو، ځان منلو، تګیو او
برګیو او د مذهبي، سیاسي او فرهنګي
بنسټپالنې د ویني بهوونکي ناورین په پام
کې لرو سره باید د افغان محمود پاڅون
یې نیکمرغه ګڼلی وي ځکه چې د صفوي
دولت له مذهبي زیبیناک څخه خلاصون د
ایران د ولس له وسه وتلی کار وو.

۴. موږ نه وایو چې د اصفهان
سوبمنو افغانانو په کندهار، هرات او
طبسین کې د صفوي چارواکو او واکمنو
د کړنو په پرتله ښه کارونه کړي دي خو
کروسینسکي د داسې یوه سړي په توګه
چې اکربکر یې د سر په سترګو لیدلي
وايي: "د ایران د پاچاهۍ پر ګډۍ له
کښېنستلو وروسته د محمود لومړنی
انساني کار د اصفهان قحطۍ وهلو او
ځپلو وګړو ته د خوراکي توکو رسول ول. د
خپلې پاچهۍ په لومړیو میاشتو کې یې د
ښه چال چلند په راخپلولو واکمني وکړه او
ایرانیان یې هک پک کړل. محمود دومره
پوه او هوښیار وو چې د ایران د پېچلې
پاچهۍ د ادارې په پر مخ بیولو کې د
افغانانو په بې تجربه ګۍ پوه شو. له دې
امله یې پخواني وزیران او لوړ پوړي
چارواکي بیرته پر خپلو دندو وګومارل او
د هر یوه تر څنګ یې یو افغان وټاکه.
افغانانو د ایرانیانو کارونه په هر ګام کې
څارل چې د بډې اخیستلو او پایلات
"فساد" مخه ونیسي او پایله دا شوه چې
په تېره نیمه پېړۍ کې دغسې حکومتي
چارو ساری نه درلود. شاه محمود هغه
کسان چې د پخواني راپرځول شوي پاچا
په وړاندې یې له درغلنې، دوه مخۍ او
خیانت څخه کار اخیستی وو او د افغانانو
په ګټه یې جاسوسي کړې وه یا اعدام او یا
زنداني کړل. هغه په برالا ویل هغو کسانو
چې خپل دولت او پاچا ته خیانت کړی وي
له هغو نه شو کولای د ښېګڼو هیله ولرو
او که وخت ورڅخه وغواړي همدې ورته

ده ته به هم خیانت وکړي[۴۱].

څرګنده ده چې سوبمنو افغان لښکریانو د صفوي چارواکو ناتار او ناروایي چې د شیعه د روحانیت په لارښوونې د کندهار د نیواک پر وخت د کندهار پر وګړو وشوي نه وې هیرې کړې او د همدغسي یوې خونړۍ پخوانۍ پېښې په تیرولو ښکار خبره ده چې د غچ د اور لمبې د سوبمنو او بریالیو لښکریانو په زړونو کي ژوندۍ وې او دا په خپله د دې لامل شوې چې د اصفهان د سوبې په اړه د هیلو غوټۍ مړاوي شي او د سوبمنو د کړنو په غبرګون کي د افغانانو په وړاندي د ایرانیانو کرکه لا زیاته کړي او هغوی یې اړ کړل چي مقاومت ته لاس واچوي او پایله یې د سوبمنو افغانانو ماته وه. نه باید هېره کړو چي د ایران پر وګړو د افغانانو په را پارولو کي د ایران د سنیانو تبلیغات بې اغیزې نه ول ځکه چي د حجاز سنیانو د شاه محمود پلار حاجي میر ویس خان (نیکه) ته فتوا ورکړې وه چي که که "یو مسلمان یو جنګیالی مسیحي ووژني، یو ثواب یې ګټلی دئ خو که څوک یو ایرانی (شیعه) ووژني نو داسي ثواب یې ګټلی چي اجر یې اویا ځله تر هغه ډیر دئ"[۴۲].

د همدغې شرعي فتوا پر بنسټ سوبمنو لښکرو که څوک وژلي، لوټ کړي او د وګړو شتمني یې ولجه کړې د دې مانا بندي چي له مذهبي لارښوونو سره سم یې چلند کړی او همدې ته کټ مټ قزلباشو سرتېرو هم د شاه اسماعیل مرشد او د شیعه د روحانیت د فتوا پر بنسټ: "د یوه سني وژنه د پنځو کافرو جنګیالیو له اجر څخه پنځه ځله زیاته ده. له سني سره نکاح روا نه ده. وینه توېونه یې روا او د شتمنۍ لوټونه یې حلاله ده او دا د دوی دیني دنده ده چي د امیندوارو میندو نسونه ور سوري کړي او نارینه کوچنیان یې په نیزې یا شلګري ور سوري سوري کړي. د سنیانو اخیستنه او پلورنه روا ده ځکه چې سنیان له اسلامي حریت څخه وتلي دي..."[۴۳].

د سنیانو نسونه یې ور سوري کړل یا یې په تبر دوه نیمایي کړل، په خوټېدلو سرو اوبو کې یې واچول او یا یې ژوندي پوست کړل... او ... اوس نو اجازه راکړئ چي د دغو فتواګانو په کوم ځای کي اسلامي عدالت او نیاو او د خدایي انصاف او ورمنه لېدل کېږي؟ کوم سالم عقل او سپېڅلی وجدان به دا ومني چي د یوه مسلمان وژنه د بل مسلمان په لاس، په شلګري د ماشوم وژنه او یا د مور له نسه د ماشوم را ایستنه یو اسلامي او شرعي امر دئ او د دغو کارونو کوونکي به د ثواب ګټونکي او جنت ته تلونکي وي؟

د اسلامي مذهبونو تاریخونو ته یوه ځغلنده کتنه څرګندوي چي د مذهبونو او ډلو له پیدا ېښت سره جوخت د هري ډلي او مذهب مذهبي مشرانو یوازي او یوازي خپل لارویان رښتوني مسلمانان بللي او بله ډله یې زندیق او کافره بللې او کله چي پر بله ډله برلاسي شوي د لاندي شوي مخالفي ډلي په حق

کي يې هيڅ ډول ناتار، شډلتيا او ظلم نه
دئ سپمولی چي د داسي غيرانساني کړنو
په کولو سره سره يې بيا هم د شرعيت
پګړی پر سر تړلې او بل لوري يې د سختي
سزا وړ بللی دئ. له دې امله د دغسي
بيلتونپالنو، وينو بهونو پوخ لامل په خپله
د اسلامي ډلو مشران دي چي خپلو
لارويانو ته د وروری، انسان پالني او د
دوه اړخيزه درناوي د ورښووني پرځای او
يا لږ تر لږه ورته ووايي چي: د هغو کسانو
په منځ کي چي پيغمبر يې يو، کتاب يې
يو دئ هيڅ توپير نشته او بايد يو بل ته د
زړه له کومي درناوی ولري، هغوی دې ته
را پاروي چي د بلي ډلي ګروهنه ور و
غندي شک پرې وکړي او له دې لاري يې
د دښمنی اور ته لمنه ووهله او د خپلو
موخو په لوموکي يې ساده او سپېڅلي
کسان راښکېل او خپلي ګټي او چرچې يې
تر لاسه کړي دي. ان تر نن پوري هغه څه
چي د ګروهنيزي بېلوالي او د دښمنی د
اور پر مخ لاړ غوړي تویوي په اسلامي
هېوادونو کي مخَوَراغيزمن روحانيت دئ
چي د خپلو ګټو لپاره يې له دين څخه له
پيرودونکو ډک بازار جوړ کړی او له
همدې لاري ورته په درغلني د ثواب د
ګټي د وړيا جنت د لاسوندي د ورکړي له
لاري پيرودونکي د غيرانساني او
ترهګريزو کړنو کولو ته هڅول کېږي او په
ګڼ شمير اسلامي ډلو کي د کرکي د زړيو
د شيندلو له لاري نه پرېږدي چي وګړي د
انسانانو په څېر د عقل او پوهي تر رڼا
لاندي د يو بل ترڅنګ ژوند وکړي. او
خپله ټوله وسه د خپلو هم نوعو د بسيايني
او هوسايني په لاره کي په کار واچوي او د
هغو له ګټو څخه برخمن شي. په لوېديځه
نړۍ کي هر څوک چي په هري ګروهني،
دين او يا مذهب وي، د يو بل تر څنګ
ژوند کوي او هيڅ چا ته دا اجازه نه ورکوي
چي د ديني اختلاف، ګروهني، جنسيت، د
ټبر او مليت لپاره دي ورته په سپکه
سترګه وکتل شي او يا دي سپکاوی وشي.

اين همه جنگ وجدل حاصل کوته نظری است
چون نظر باز کنی، کعبه وبت خان يکی است!

ژباړه: دغه جګړه او شخړه د ناپوهی او
لنډپاری ېبره (حاصل) ده چي ښې سترګي
وغړوئ، نو کبعه او بتکده دواړه يو دي.

ايراني پوه ډاکټرشفا د دين او
مذهب په اړه پراخه پلټنه کړې او هغه پرته
له توپيرپالني او لنډګروهني وايي چي:
شيعه ګروهنه د خپل د بنسټ له پيدا ينبته
له سني ګروهني سره چي د اسلامي
خلافت او اداري حکومتي ګروهنه وه
دښمني درلودله، خو دغه دښمني لومړيو
درو خليفه ګانو ته د ډيرو سپک ويلو تر
کچي راټيټه شوې وه. سنيانو هيڅکله
خپل څلورم خليفه (علي بن ابی طالب) ته
سپکاوی نه دئ کړی او ان د علي د
کورنی نورو غړو ته سره له دې چي د
هغوی امامت ته يې غاړه نه کښېښودله،
سپکاوی نه دئ کړی خوپه ايران کي د
صفويه د لړی په رامنځ ته کېدلو څانته يې
د عمر وژونکو او عمر سوځوونکو
نومونه راخپل کړل او د ډېرو نورو سپکو
او سپرو په ويلو يې چي "عمر اجازه

ورنکړه هغه کسان چې دین او پیغمبر یې
یو دئ د ورونو په شان د یو بل تر څنګ
ژوند وکړي" دغه اور ته لمن ووهله.
صفوي پاچهانو د خپلو سیاسي موخو د پر
مخ بیولو لپاره د دین یوې دغسې
بېلتونپالي هڅې ته اړتیا درلودله [او له
همدې امله یې شیعه ګروهنه یوه رسمي
او حکومتي ګروهنه اعلان کړه او بیا یې
په سنیانو کې په تورو او غاړو پرېکونو، د
نسونو د څیرلو او غیر انساني ځورونو له
لارې پلې کړه. شاه اسماعیل په دوه شپو
او ورځو کې په تبریز کې شل زره سنیان
یوازې په دې ګناه چې د اسلام درو
خلفاوو ته سپک نه ول ویلي په تبر دوه
نیمه کړل]. د هغه په کړس کې په عثماني
ترکیه کې نقیبانو او د هغوی "قاضی
القضات" د شیعه ګانو په اړه له ساده ګۍ
او لېونتوبه ډکه فتوا ورکړه چې د سنیانو
په اړه د اصفهان د معظمعو مجتهدانو له
فتوا څخه یې کمې نه درلود او د همدغې
فتوا له امله په ترکیه کې څلوېښت زره
شیعه ګان د شیعه توب په جرم ووژل شول.
نومورې یوه زیاتوي: د "اصول کافي" له
لیکنې او خپریدا را په دېخوا تر نن د
شیعه د احادیثو او روایاتو په کتابونو کې
د سنیانو او د هغوی د ګروهنې او
مقدساتو پر ضد په زرګونو لوی او کوچنی
سپکاوي راوړل شوی دي. د سلطان
حسین صفوي د پاچهۍ په دور کې شیخ
الاسلام ملا محمد باقر مجلسي د سنیانو
پر ضد د جګړو پارونو اتل چې خپلې ټولې
هڅې یې د ایران د سنیانو په ځورونو نیغې
کړې وې د سنیانو د سپکولو او غندلو په
موخه یې یوازې په خپل سره له ځانه له زرو
زیات حدیثونه را وایستل. څرګنده ده چې
دغو دښمنیو غبرګون را پاراوه او د
عثماني ترکیې سني روحانیت د شیعه
ملایانو او شیخانو په حق کې د لا
کرغېړنو فتواګانو په ورکړې کې له شیعه
روحانیت څخه کمې نه درلوده[۴۴].

د اسرارنامې لیکوال نومیالی پوه
فریدالدین عطار په اسرارنامه کې وایي:

ز نادانی دلی پرزرق و پرمکر
گرفتار علی ماندی و بوبکر همه عمر
اندرین محنت نشستی ندانم تا خدا را کی
پرستی؟

ژباړه: له ډېرې ناپوهۍ له پرتم او
درغلنې ډک زړه د علي او بوبکر په ډالونو
کې رابنکیل شول ټول ژوند یې په همدې
خوارۍ کې تېر کړ نه پوهېږم چې ته به کله
خدای پالنه کوې.

۵. د ګروهنیزو مذهبي جګړو یوه
ځانګړتیا چې پکښې ګروهنیز او دیني
مشران ټاکونکې ونډه لري په خواشینۍ
دا ده چې د ولجې "غنیمت" تر نامه لاندې
خپل جنګیالي د ماتې خوړلو وګړو د
شتمنۍ لوټولو او وژلو ته هڅوي. او په
پرتله ییز توګه ویلای شو چې: هغه ناتار
او شړلتیا چې د ایران وګړو د افغان
پاڅونوالو له لاسه ولېد ښایي د صفوي
قزلباشو له هغه ناتاراو شړلتیا څخه په
کمه نه وي کله چې د افغانستان د یو شمېر
برخو د نیولو په وخت کې تر نیواک لاندې
افغانانو د هغوی له لاسه ولېدل. شک

نسته چي د افغان پاڅونوالو د پوهي کچه يوازې د ايران د تېرنيزو او ګروهنيزو مذهبي لړکيو په کچه وه چي د ټولو پوهه يوازې له ديني تنګ الواکۍ يا تعصب څخه د غچ اخيستنې د اور د کړۍ ګرد چاپېره راتاوېدله او د هغوی د کړنو لاربښود ليکه هم دوی ته ورکړل شوي ديني فتوا ګاني وې.

۶. وروستنۍ خبره دا چي: افغان زوزات (نسل) بايد پام وساتي چي د ميرويس خان ځای ناستي د دې پر ځای چي خپله ولسي او ملي خپلواکي په خپله خاوره کي پياوړې او را ټينګه کړې وای يوازې د ځوانۍ د شور او زوړ او مذهبي احساساتو او د پښتونولۍ د ننګ تر سيوري لاندي پرته له دې چي يوه په ځير ټاکل شوې محاسبه يې کړې وي او پرته له دې چي د يوه تاريخي هېواد لکه ايران د اداره کولو لپاره يې افغاني وړتيا او ظرفيت ښه ترا شنلی او څېړلی وي ويې غوښتل د افغاني واکمنۍ لمنه د صفوي ايران په خاوره کي وغځوي حال دا چي د يوه هېواد د پلازمېني او څو ولايتونو نيول يوه خبره او د ايران په شان د يوه لوی هېواد اداره کول بله خبره ده او په داسي اکر بکر کي چي کارپوهه او کار ازمويل شوي کارپوهان په نست ول د دغسي يوه هېواد اداره کول د يو شمېر افغاني توريالیواو بې باکو جنګياليو لپاره ډېر دروند کار وو. له همدې امله ټولو هغو افغانانو چي د ايران د نېواک لپاره يې ملا تړلې وه له هغي ورځي چي له کندهاره راووتل د ژوند تر پايه يې يوه ورځ آرامه ونه لېدله او په پای کي (شل زره بريدګر ځواک چي څه ناڅه ديرش زره د کورنيو غړي يې چې د شاه محمود په امر له کندهاره اصفهان ته کډه شوي ول) د ايران د ولس له لاسه په ځانګړې توګه د نادر افشار له پلوه ټول ووژل شول او په پای کي د ۱۷۳۸ز کال نادر افشا د کندهار د هوتکي دولت ليکي را دړې وړې کړې او د غلزيو هوتکو د کورنۍ مشران يې له کندهاره مازندران، بخارا، بلخ او د هيواد نورو ليرو سيمو ته وشړل. د ميرويس خان له وخته نيولې بيا د افغانستان د يوه خپلواک دولت تر جوړېدلو (۱۷۴۷زکال) پوري ديرش کاله ونيول چي د ستر احمدشاه ابدالي په شان پياوړی سياسي او پوځي شخصيت رامنځ ته شي او هغه وکولای شول د افغاني کارپوهو مشرانو په سلا او مشوره د افغان د واکمنۍ لمنه د يوې پياوړي اډانې په غېږ کي راجوړه او دا دئ تر نن پوري يې دوام موندلی دئ.

## اخځ او لمنلیکونه:

* له دې چي زموږ د خبرو موخه د افغانانو په لاس په صفوي پېر يا دور کي د ايران د پلازمېني راپرځونه او د صفوي رژيم د کمبلي ورټولونګ ده او له دې چي دغه سکالو په اوسنيو افغاني او ايراني کړيو کي چي ځانونه "افغانستاني" بولي له ځانګړي حساسيته برخمنه ده د دغو کړښو ليکوال د خپلي لېکنې ختهه او تومنه د هغو لاسوندو، کتابونو او د منبتوالو يا شاهدانو د سترګو د ليدلي حال

پر بنسټ درزولې چي د اصفهان د پرځېدلو په پېښه کي، پېښي یې په خپلو سترګو لیدلي او خپل یادښت لیکونه یې د رسالو او کتابونو په بڼه خپاره کړي دي.


۱. د مسیحي سیلاني پېښلیک/تاریخ سیاح مسیحي، تحشیه او پایځوړ فقیرمحمد خیرخواه، کابل ۱۳٦۳ ل پ. ۱۰ – ۱۲.
۲. لکهارت، د صفوي دولت پرځېدنه/ انقراض دولت صفوي، د عماد ژباړه، تهران، ۱۳٦۴ ل پ ۵۵۵.
۳. د مسیحي سیلاني پېښلیک/تاریخ سیاح مسیحي پ ۲۸.
۴. لکهارت، هماغه اثر، پ. ۱۵۱.
۵. محمد خلیل مرعشي، مجمع التواریخ/ د تاریخونه ټولګه پ ۴۴ (د لکهارت له خولې، د ۱۳۱ پاني لمنلیک).
٦. لکهارت، هماغلته، پ ۱۵۱.
۷. لکهارت، هماغه، پ ۱۵۰–۱۵۲.
۸. کروسینسکي، هماغه اثر، پ ٦۳.
۹. لکهارت، هماغه اثر، پ ۱۵۱ – ۱۵۷.
۱۰. ایران ،کلده اوشوش، لیکنه، مادام ژان دیولافوا، شوالیه لژیون دونورد پاریس د اکاډیمۍ افسر ۱۸۸۷، د اروابناد علمي محمد فره وشي ژباړه، د ډاکټر بهرام فره وشي په هڅه، چاپ ۱۳۷۷ د تهران پوهنتون، پ ۲۵٦–۲۵۷.
۱۱. هماغه اثر، پ ۲۵۷.
۱۲. لکهارت، هماغه اثر، پ ۱٦۳– ۱٦۴.
۱۳. قدرت الله حداد– کیوان (ولس)، ۸۱ ګڼه پ ۳، د تاریخ منظم ناصری له مخي.
۱۴. لکهارت، هماغه اثر، پ ۱۵٦ د مسیحي سیلاني له تاریخ سره دي پرتله شي، پ ۴۰.
۱۵. د کروسینسکي په وینا د اصفهان پرځېدنه/سقوط اصفهان به روایت کروسنیسکي، پ ۵۱.
۱٦. د مسیحي سیلاني پېښلیک/تاریخ سیاح مسیحي، پ ۳۹، لکهارت، هماغه اثر، پ ۱۸۱.
۱۷. د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحي، پ ۴۲،لکهارت، پ ۱۹۳.
۱۸. د کروسینسکي په وینا د اصفهان پرځېدنه/سقوط اصفهان به روایت کروسنیسکي، پ ۵۹.
۱۹. هماغه اثر، پ ٦۰.
۲۰. جي، پي، تیت، سیستان، ټوک ۱، د ډاکټرسیداحمد موسوي ژباړه ، د تهران چاپ ۱۳۷۴، له پ ۱۵۴وروسته، د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحي، پ ۴۲.
۲۱. لکهارت،هماغه اثر، پ ۱۸۷، ۱۹۵.
۲۲. ډاکټر شفا، له یو زرو څلور سوه کالو وروسته/ پس از هزار وچهار صد سال، ټوک ۲، پ، ۷٦۰.
۲۳. لکهارت،هماغه اثر، پ ۱۸۷، ۱۹۵.
۲۴. لکهارت، پاڼي ۱۹۸–۱۹۹.
۲۵. شفا، هماغه اثر، رستم التواریخ. د محمدهاشم آصف لیکنه، د تهران چاپ، ۱۳۴۸.

۲۶. د کروسینسکي په وینا د اصفهان پرځېدنه/ سقوط اصفهان به روایت کروسنیسکي، پ ٦١.
۲۷. لکهارت، پاڼې ۲۰۰-۲۰۱، د مسیحي سیلاني پیښلیک/تاریخ سیاح مسیحي، پاڼې ۴۹-۵۰.
۲۸. فرهنگ، افغانستان په وروستیو پنځو پېړیو کې/ افغانستان در پنج قرن اخیر، ټوک۱، پ۹۴، لکهارت، مخکې ویل شوی اثر، پ ۲۱۹، د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحی پ٦٣، د اصفهان پرځېدنه/سقوط اصفهان ، د کروسینسکي په وینا، پ٧٦-٧٧.
۲۹. تاریخ سیاح مسیحي، کابل، ص ۱۲-۱۳، سقوط اصفهان به روایت کروسینسکي، ص٤٦.
۳۰. لکهارت، هماغه اثر، ۲۲۱، د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحی پ ٦٣، د اصفهان پرځېدنه/ سقوط اصفهان، د کروسینسکي په وینا پ ٦٣.
۳۱. د مسیحي سیلاني پېښلیک/تاریخ سیاح مسیحی، پ ۵۱، لکهارت، پ ۲۳۲.
۳۲. لکهارت، پ۲۳۳، د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحی، پ۵۱، د اصفهان پرځېدنه /سقوط اصفهان ، د کروسینسکی په وینا، پ ٦٧، کروسینسکي نوي مذهب ته د رااوښتو کسانو شمېره سل زره لیکلې ده.
۳۳. د اصفهان پرځېدنه /سقوط اصفهان ، د کروسینسکی په وینا، پ ٦٨.
۳۴. لکهارت، پ ۲۳۴، کروسینسکی، پ ۵۳.
۳۵. د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحی، پ ۵۷.
۳٦. گوربت مجله، څلورمه گڼه، پنځم کال، پ ۵، د ښاغلي حداد په قلم د زبردست خان مقاله.
۳۷. د اصفهان پرځېدنه /سقوط اصفهان ، د کروسینسکي په وینا، پ ۷۲.
۳۸. لکهارت، هماغلته، صفحات پاڼې ۲۳۹-۲۴۰، د مسیحي سیلاني پېښلیک/تاریخ سیاح مسیحی، پاڼې ٦٠-٦١.
۳۹. لکهارت، پ ۳۱۷، د مسیحي سیلاني پېښلیک/تاریخ سیاح مسیحي، پ ٦٤، د اصفهان پرځېدنه/سقوط اصفهان د کروسینسکي په وینا ، پ ۷۵.
۴۰. هماغه سرچینه، هماغلته.
۴۱. د اصفهان پرځېدنه /سقوط اصفهان ، د کروسینسکی په وینا، پ ۸۰، فرهنگ، هماغه اثر، پ ۹۵ .
۴۲. د مسیحي سیلاني پېښلیک/ تاریخ سیاح مسیحی، پ٦٣، لکهارت، پ۲۲۱.
۴۳. د اصفهان پرځېدنه /سقوط اصفهان د کروسینسکي په وینا، چاپ ۱۳۸۲، پ ۳۲.
۴۴. له یو زور څلور سوه کالو وروسته/پس از هزار و چهار صد سال، پ ۷۲٦.
۴۵. توضیح المسایل ، پ ( ۲۵۹-۲۶۰).



مترجم
ډاکټر محمدصديق ظهير

# بين المللي سياست

## د ملت، نېشنليزم او يو ملتي دولت پېژندنه

دريمه برخه

*****

په دې فصل کې نېشنليزم څېړل کېږي، چې د پنځو پېړيو راهيسې موږ خپل سياسي هويت په ګرکندوو. نېشنليزم چې د ډېرو ولسونو د سياسي هويت عمده جزء دئ، د عنعنوي جهاني سياست ډېره عمده برخه تشکيلوي. سره له دې هم، نېشنليزم د يو سياسي هويت په توګه اوس د پخوا په شان دومره مسلط نه دئ. ځيني خلک خو حتی په دې کې شک لري چې نېشنليزم به د يو سياسي هويت په توګه تر ډېره وخته دوام وموسي او د بېلابېلو ګډملتي transnational بديلونو پيش بينی کوي.

**د ملت، نېشنليزم او ملتي دولت تعريفونه:**

د نړۍ سياسي وېش تر ډېره حده پر

درو مفاهیمو ولاړ دئ: ملت، نېشنلیزم او ملتي دولت. د دې درو مفاهیمو تیوریکي او عملي پوهه او هم دا چي دوی یو له بله څرنګه سره تړلي دي، زموږ د بین المللي سیاست په تحلیل کي اساسي اهمیت لري.

**ملت:**

ملت هغه ولس دئ چي: (الف) ګډ ډیموګرافیک او کلتوري مشابهتونه ولري، (ب) ګډ ټولنیز احساس ولري او (ج) په سیاسي لحاظ د ځان د کنټرول او اداره کولو غوښتنه ولري. په دې حساب، ملت غیرمادي (معنوي) شی دئ؛ یو ملت هغه وخت وجود لري چي غړي یې فکر وکړي چي وجود لري. دولت (مملکت) یوه جسماني [مادي] موسسه ده مګر ملت "یو روح او یو معنوي کیفیت دئ".

**ډیموګرافیک او کلتوري مشابهتونه:**

ګډ مشابهتونه له یوه ولس سره د ملت په جوړولو کي مرسته کوي. دا مشابهتونه کېدای سي چي ډیموګرافیک مشخصات (لکه ژبه، نژاد او مذهب) وي، یا مشترک کلتور او یا هم ګډي تاریخي تجربې وي. داسي ویل کېدای سي چي د امریکې ملت د دوهمي عمومي جګړې، د مارتین لوترکینګ Martin Luther King، مک دونالد، MTV، د سپټمبر د یوولسمي تروریستي حملې او ډېرو نورو دا ډول پېښو نتیجه ده چي د امریکې ګډي تجربې بلل کېږي. د امریکې بیرغ او د پک عقاب په شان سمبولونه د امریکایي نېشنلیزم په تقویه کي مرسته کوي.

**ګډ ټولنیز احساس:**

Feeling of Community

ټولنیز احساس هم د یو ملت په تشګل کي مرسته کوي. د ملت والي درک او استنباط دلته ډېر مهم رول لري. که یو ګروپ هر څومره عیني objective مشابهتونه هم سره ولري، مګر که دوی په زړه کي د ملتوالي عندي subjective احساس ونه لري ملت نه سي بلل کېدلای. د ګروپ په دننه کي خلګ باید دا درک او استنباط ولري چي دوی ګډ مشابهتونه لري او یو له بله سره د دې ګډو مشابهتونو په وسیله تړلي دي.

**د سیاسي جلاوالي غوښتنه درلودل:**

د سیاسي جلاوالي غوښتنه [یعني په سیاسي لحاظ د ځان د کنټرول او اداره کولو غوښتنه] هم د یو ملت له تشګل سره مرسته کوي. د ملت او ایتنیکي ګروپ تر منځ توپیر دا دئ چي، د ایتنیکي ګروپ په خلاف، یو ملت غواړي چي خپل حکومت ولري او یا لږ تر لږه [داخلي] خودمختاري ولري. د امریکې په متحده ایالاتو کي ډېر ګروپونه سته، لکه ایټالیایي امریکایان، چي مشترک کلتور او د هویت احساس لري. مګر دا ایتنیکي ګروپونه دي نه ملتونه، ځکه دوی له امریکې څخه د جلاوالي غوښتنه نه لري. په ملي لحاظ سره په وېشل سوو دولتونو کي (لکه قبرس، چي د یوناني اکثریت او ترکي اقلیت ډلو څخه جوړ دئ) اقلیت ډلي نه غواړي د اکثریت مشروعیت ته غاړه کښېږدي.

دا خبره باید په پام کي ولرو چي د ایتنیکي ګروپونو او ملتونو تر منځ تفاوت هر وخت روښانه نه دئ. په ډېرو هیوادو کي داسي ایتنکي ګروپونه سته چي نېشنلیستي (جلاغوښتني) احساسات لري، او یا دا چي ځیني غړي یي نېشنلستان (جلا غوښتونکي) وي. په کاناډا کي، د مثال په توګه، د کیوبیک Quebec په ایالت کي ډېر فرانسوي کاناډایان د کاناډا په دولت کي د خپل موقف څخه راضي نه دي. ځیني کیوبیکیان له کاناډا څخه د جلا کېدلو غوښتنه لري او ځیني یي یا دا غوښتنه نه لري.

**نېشنلیزم:**

نېشنلیزم یو سیاسي احساس دئ چي په خلګو کي د خپل هیواد په هکله د وطنپالني فکر راپیدا کوي او خلګ له (دوی-ګروپ) څخه راجلا او له (موږ-ګروپ) سره یې نښلوي. د نړی وال سیاست په جوړښت او اجراآتو کي د نېشنلیزم اهمیت ډېر زیات دئ. نېشنلیزم یوه ایډیالوجي ده. لکه ټولي ایډیالوجي ګاني، نېشنلیزم له یو لړ سره تړلو مفکورو څخه جوړ دئ چي (۱) د ښه او بد په باب ارزښتونه ټاکي، (۲) خپل پیروان وطن دوستی ته رهنمایي کوي، (۳) هغه کسان چي دې ایډیالوجی ته معتقد دي یو له بله سره نښلوي، او (۴) او له هغو کسانو څخه یي بېلوي چي دې ایډیالوجی ته معتقد نه دي.

د یوې ایډیالوجی په توګه، نېشنلیزم په دې باور لري چي ملت باید د افرادو ډېر مهم او لومړنی سیاسي هویت وي. سربېره پر دې، نېشنلیستي ایډیالوجي ټینګار کوي چي د افرادو عمده سیاسي وفاداري باید د وطن دوستی له مخي و ملتي دولت nation-state ته وروغځېږي. که څه هم ډېر خلګ نور هویتونه هم لرلای سي، مګر نېشنلیزم ډېر وخت د دوی عمده سیاسي هویت تشکیلوي. د مثال په توګه، د امریکې جمهور رئیس لیندن جانسن Lyndon B. Johnson یو وخت ویلي وه چي، "زه، په ترتیب سره، یو امریکایي، ټکساسي او ډیموکراټ یم" د جانسن په شان، موږ هم د احساساتو له مخي خپل هویتونه درجه بندي کوو، او هم د جانسن په شان، موږ ته وطن تر ټولو مخکي دئ. په همدې ډول، ښایي تاسي به په سیاسي لحاظ خپل ځان تر ټولو مخکي او تر ټولو مهم د خپل هیواد تبعه وبولی. حتی تاسي به ښایي د خپل هیواد لپاره وجنګېږی. ایا تاسي به د خپل ښار او یا کلي لپاره هم وجنګېږی[1]؟

**یو ملتي دولتونه:**

Nation- States

یو بل مفهوم چي زموږ سره د ځان په

[1] ما یو وخت د خپل محترم استاد محمد نبي خان څخه، چي زموږ د زده کړي په وخت کي د کندهار د میرویس نیکه د لیسې مدیر وو. وپوښتل چي ښاغلی عزیزالله واصفي. چي په هغه وخت کي د افغانستان د ولسي جرګې وکیل وو، راته تعریف کړي. محترم استاد بې له ځنډه راته وویل چي: "ښاغلی واصفي صاحب افغان، پښتون، درانی او الکوزی دئ".

تعریف او پوهه کي په سیاسي لحاظ مرسته کوي یو ملتي دولت دئ، چي د ملت مفکوره د دولت سره یو ځاي کوي. دولت، چي په شپږم فصل کي به زیاتي خبري پر وسي، یو مملکت او یو مستقل سیاسي سازمان دئ چي د قلمرو، نفوس او حکومت په شان د ټاکلو مشخصاتو او خصوصیاتو درلودونکی وي. کاناډا او چین، د مثال په توګه، دولتونه دي. ایډیالي او مطلوب یو ملتي دولت هغه دئ چي ټول ملت عملاً د خپل دولت د سرحداتو په دننه کي سره متحد وي، او د دولت اکثریت خلګ خپل هویت په دغه ملت کي څرګندوي. لکه چي موږ به یي په وروسته کي ووینو، ډېر لږ دولتونه ودې ایډیال او مطلوب ته رسېدلي دي، مګر ټول ملتونه د خپل ځان دولتونه غواړي او ټول دولتونه د ملي وحدت په هیله دي.

**د نېشنلیزم پاڅون او مخ پر لوړتوب (صعود):**

The Rise and Ascendancy of Nationalism

په اوسنۍ نړۍ کي نېشنلیزم دومره زیات نفوذ لري چي څوک باور نه سي کولای چي دې مفکورې به له پخوا څخه وجود نه درلود. مګر نېشنلیزم همېشه وجود نه درلود او د ډېرو پوهانو په عقیده نېشنلیزم یوه نسبتاً نوې پدیده ده. یقیناً، هر وخت داسي کلتورونه موجود وه چي خلګو په هغو باندي خپل هویت څرګنداوه. دا هم حقیقت دئ چي خلګو د تاریخ په اوږدو کي په بېلا بېلو سیاسي واحدونو کي ژوند کړی دئ. مګر، لکه چي موږ به یي وروسته ووینو، د خلګو په منځ کي له یو سیاسي واحد، یعني هیواد، سره د دوی د شخصي پیوستون احساس نسبتاً نوې پدیده ده.

دا واقعیت چي نېشنلیزم همېشه وجود نه درلود، ډېر اهمیت ځکه لري چي که یو شي همېشه وجود نه درلود، نو حتمي نه ده چي د تل لپاره به په اینده کي دوام ولري. لکه چي د دې فصل په وروسته کي به یي ووینو، نېشنلیزم خپل مثبت او منفي اړخونه لري، او ډېر کتونکي په دې عقیده دي چي نېشنلیزم تر وخت تېر، او حتي خطرناکه مفکوره ده چي باید له نظره ولوېږي. په دې باندي پوهېدل چي نېشنلیزم مطلق نه دئ موږ دې بحث ته رهنمایي کوي چي څرنګه یي د تاریخ په اوږدو کي تکامل موندلی دئ.

**لرغونی نېشنلیزم:**

دا ناممکنه ده چي په دقیقه توګه د نېشنلیزم د تکامل پیل وټاکو. په لوېدیځ کي، د روم د امپراتورۍ Roman Empire زوال زمینه ورته برابره کړه. په روم کي، لږ تر لږه د امپراتورۍ په بېلابېلو برخو کي د نخبه ګانو تر منځ، یو راز مشترک کلتور، مشترکه ژبه (لاتیني ژبه) او مشترک قوانین جاري وه. د روم تر سقوط وروسته دا مشترک کلتور او سیاسي اړیکي سره ویجاړي سوې.

په نتیجه کي لاتیني ژبه، چي د اروپا ټولو نخبه ګانو خبري په کولې، په تدریجي توګه له استعماله ولوېده. محلي

ژبو چي د لاتين ځای ونيو نو نخبه ګان يي سره ووېشل. دا د هغه پروسې په لار کي لومړي ګام وو چي بالاخره يي د اروپا په لوړو طبقاتو کي د بېلا بېلو ملي هويتونو احساس منځته راووړ. تر ۱۵۱۷ ع راوروسته، د پروتستانتي ريفورم غربي عيسويت سره ووېشه او اروپايي کلتور يي نور هم سره ټوټه ټوټه کړ.

**د موډرن نېشنليزم مخ پر لوړتوب (صعود):**

Ascendant Modern Nationalism

موډرن نېشنليزم په ۱۷۰۰ ميلادي کلونو کي سره راپيدا سو. تر دې وخت دمخه، د دولت او د هغه د اوسېدونکو تر منځ اړيکي له اوسني عصر سره ډېر توپير درلود. ډېر خلګ له هغه دولت سره چي دوی ژوند پکښي کاوه په ذهني او احساسي لحاظ تړلي نه وه. بلکي دوی يوازي د يوه پاچا رعيت وه چي د خدای په امر يي پر دوی حکومت کاوه. په وروسته کي دې حالت د ولسي حاکميت popular sovereignty د دکتورين تر اغېزې لاندي تغير وموندی. د دې دکتورين له مخي، خلګ رعيت نه دي، بلکي تبعه citizens دي چي په دولت کي (که هر څومره لږ او سر سري هم وي) برخه لري. سربېره پر دې، حکمرانان د خلګو په رضايت حکومت کوي (حتی که دا رضايت يوازي تيوريکي بڼه ولري او زيات وخت عملي جنبه ونه لري).

د د اووه لسمي ميلادي پېړۍ تر وروستيو کلونو پوري، ولسي حاکميت په سويتزرلينډ، انګلستان، او يو څو نورو ځايونو کي په تدريجي توګه تکامل کاوه. وروسته يي د امريکې له انقلاب (۱۷۷۶) او د فرانسې له انقلاب (۱۷۸۹) سره سرعت واخيست. دې هيوادونو ولسي حاکميت ته ډېر انکشاف ورکړ؛ پاچهان يي په کلي توګه ايسته وغورځول او پر ځای يې، د امريکې د ازادۍ د اعلاميې American Declaration of Independence په قول، دا اعلام کړه چي د حکومتونو "عادلانه قدرت د هغو خلګو د رضايت څخه رازېږي چي حکومت باندي کېږي".

تر دې ډول پيل راوروسته، د ولسي حکومت مفکوره ټولي نړۍ ته پسي پراخه سوه. د امريکې او فرانسې د انقلاب په ۲۰۰ کلني کي مطلقه شاهي رژيمونه، چي له ډېره پخوا څخه موجوده وه، تقريباً له منځه ولاړل. دا انکشافات په دې دليل ښه استقبال سول چي د ملت په مفکوره کي د ټولو غړو لپاره د مساوات مفهوم نغښتی دئ. ليبرال فيلسوف تامس پېن Thomas Paine پخپل *د انسان حقوق* (۱۷۹۱) *The Rights of Man* نومي اثر کي ليکي: په هغه ملتي دولت nation-state کي چي ولسي حاکميت ولري ملت او ډيموکراسي نه بېلېدونکي اړيکي لري. د ملګرو ملتونو د منشور ۵۵ ماده د نېشنليزم په ملاتړ کي وايي: "د خلګو د خودمختارۍ اصل د ثبات او سعادت له هغو شرايطو څخه يو شرط دئ چي د ملتونو تر مينځ د سوله ييزو او دوستانه

روابطو لپاره ضرور دئ". لکه چي د دې فصل په وروستیو برخو کي به ووینو، د خودمختارۍ مسئله دومره اسانه لاهم نه ده.

**د يو ملتي دولت د تشکيل موډلونه:**

Patterns of Nation-State Formation

لکه د نېشنلیزم تاريخ چي ښيي، ملت، نېشنلیزم او ملتي دولت په بېلابېلو اشکالو او موډلونو سره منځته راځي. ځيني وخت ملت او نېشنلیزم تر دولت مخکي تشکل مومي؛ کله بيا دولت تر ملت او نېشنلیزم مخکي راځي؛ او په ځينو حالاتو کي بيا ملت او نېشنلیزم د دولت سره يو ځاي تکامل کوي.

**ملت او نېشنلیزم تر يو ملتي دولت وړاندي:**

د دولت جوړوني اسانه شکل هغه وخت منځته راځي چي د يوه ولس په منځ کي د کلتوري او سياسي هويت قوي احساس وجود ولري، او د ملت تشکل تر دولت مخکي منځته راسي. دا پروسه د "وحدت نېشنلیزم" بلل کېږي. يوروپ يو له هغو ځايو څخه دئ چي لومړی ملتونه سره يو ځاي سول او وروسته په دولتو کي مدغم سول. د مثال په توګه، جرمنيان ډېر مخکي له دې چي په ۱۸۶۰ او ۱۸۷۰ کلونو کي جرمني تاسيس کړي د يو کلتوري ولس په حيث موجود وه. په همدې ډول، د روم د امپراتورۍ تر زوال وروسته، ايټاليا تر هغه وخته ټوټې ټوټې پاته سوه چي د ايټالوي کلتوري وحدت احساس او ورسره مل سياسي نهضت دوباره پکښي راپيدا سو او په کال ۱۸۶۱ کي ايټاليا د يوه متحد مملکت په توګه رامنځته سوه. همدارنګه، په جاپان کي هم نېشنلیزم د جاپان د توکوګاوا شوګوني دوران (۱۸۶۷-۱۶۰۳) د فيوډالي اشرافو تفرقه پاي ته ورسوله او قدرت يي امپراتور ته وراننتقال کړ.

**يو ملتي دولت تر ملت او نېشنلیزم وړاندي:**

ځيني وختونه، لومړی دولت ايجاد سي او وروسته همدا دولت د خلګو تر منځ او هم د خلګو او دولت تر منځ مشترک ملي هويت منځته راوړي. د دولت جوړوني state-building دا پروسه ډېره مشکله ده. يو علت چي دولتونه بې له يوې ملي هستۍ څخه په وجود راځي هغه استعمار دئ. د مثال په توګه، اروپايي قدرتونو په مصنوعي ډول د بېلابېلو قبيلوي او ايتنيکي سوابقو خلګ د خپلو افريقايي مستعمرو په سرحداتو کي شامل کړل. په راوروسته کي، کله چي دا مستعمرې دولتونه سول اکثرو يي يو واحد او منسجم ملت نه درلود چي د استقلال د تر لاسه کولو پر وخت ملي وحدت پر بنا کړي. مثلاً رواندا Rwanda او بروندي Burundi دوه ګاونډي هيوادونه دي چي په هغو کي د هوتو Hutu او توتسی Tutsi قبيلې په استعماري سرحدونو کي واچول سوې. کله چي دوی استقلال ته ورسېدل هماغه استعماري سرحدونه د دې دواړو هيوادو

سرحدونه وګرزېدل. ستونزه په دې کې ده چې د دې ولسونو عمده سیاسي هویت رواندایي یا بروندایي نه سو. دوی هماغسې هوتو او توتسي پاته سول، چې ځو ځله خونړۍ تشدد ته سره ورسېدل.

په بالکان، سومالیه، افغانستان او عراق کې تر مداخلې وروسته، د ملي هویت او باثباته دولت جوړولو ستونزو د امریکې د متحده ایالات، ملګري ملتونه او نور سیمه ییز سازمانونه را ایسار کړي او لاریي ځني ورکه کړې ده.

**ملت، نېشنلیزم او یو ملتي دولت یو ځاي منځته راځي:**

زیات وخت، ملت جوړونه nation building او دولت جوړونه state building یو له بل سره تړلي نه وي [یعني حتمي نه ده چې ملت به تر دولت مخکي او یا دولت به تر ملت مخکي جوړېږي]. ځیني وخت دواړه یو ځاي تکامل سره کوي. دا تقریباً هغه جریان دئ چې د امریکي په متحده ایالاتو کي منځته راغی. د امریکاییت [ځان امریکایي بلل] او دولت مفکوره په ۱۷۰۰ کلونو کی راپیل سوه او په داسي حال کي یي پرمختګ او انکشاف وکړ چي یو اوږد داخلي جنګ پر تېر سو، د مهاجرو سېل پر راروان دئ، او نژادي او ایتنیکي توپیرونه پکښي موجود دي. خبره دا ده چي امریکایي نېشنلیزم په کال ۱۷۷۶ کي، چي امریکې خپله ازادي اعلان کړه، نه دئ زېږېدلی، بلکي په یوه دولت کي د اوږدې زمانې ژوند کولو په جریان کي یي تکامل موندلی دئ.

**نېشنلیزم په عمل کي:**

د خپل ځان د اداره کولو [خودمختاری] لپاره د مشترک هویت لرونکو خلګو له خوا د یو ملتي دولت جوړول ډېره په زړه پوري او ګلالۍ مفکوره ده. یقیناً چي نېشنلیزم ګټې لرلي دي، مګر واقعیت دا دئ چي خپل ځانته تیاره اړخ هم لري. د نېشنلیزم د ګټې او تاوان په څېړلو کي لومړی او مهم ګام دا دئ چي په تیوري او عمل کي د نېشنلیزم په توپیر ځان پوه کړو.

**د یو ملتي دولت تخیل myth او واقعیت:**

د یو ملتي دولت ایډیال او ارمان هم لکه نور ایډیولوژیک تصویرونه، تر واقعیت زیات پر تخیل ولاړ دئ. دلیل یې دا دئ چي د ملتونو او دولتونو ځمکني [قلمرو] سرحدونه مطابقت نه سره کوي. ډېر دولتونه د نژادي پلوه سره متحد نه دي، او ډېر ملتونه بیا په یوه او یا زیاتو ملي سرحدونو کي وېشل سوي دي. د ملتونو او دولتونو تر منځ دا ډول بې تناسبي هر وخت د تشنج او تصادم مورینه وي. پنځه اساسي موډلونه موجود دي چي لومړی یې (۱) د یو ملت، یو دولت ایډیال موډل دئ. څلور نور یې په اصطلاح بې تناسبه موډلونه دي: (۲) یو دولت، څو ملتونه؛ (۳) یو ملت، څو دولتونه؛ (۴) یو ملت، نه دولت [یعني هغه ملت چي دولت ونه لري]؛ (۵) څو ملتونه، څو دولتونه.

**یو ملت، یو دولت:**

د نړۍ د ټولو هیوادونو له جملې څخه یوازې په سلو کې لس یې ایډیال یو ملتي دولت ته نژدې حالت لري چې په سلو کې تر ۹۰ زیات خلک یې په یوه ملت پورې تړلي وي او په سلو کې تر ۹۰ زیات ملت یې د دولت په سرحدونو کې دننه اوسیږي. د امریکې متحده ایالات یو له دغه شان هیوادونو څخه دئ. په سلو کې تر ۹۹ زیات امریکایان د امریکې په متحده ایالاتو کې اوسیږي، او کوم لوی ایتنیکي ګروپ چې استقلال یا خودمختاري غواړي د امریکې په متحده ایالاتو کې وجود نه لري. د ځینو بومي امریکایانو په منځ کې دا ډول یو احساس سته، مګر هغوی په مجموع کې د امریکې د متحده ایالاتو د نفوس په سلو کې یو تشکیلوي. بله خبره دا ده چې په امریکایانو کې ملي ویاړ، وطن پرستۍ او د نېشنلیزم نور احساسات ډېر غښتلي دي.

**یو دولت، څو ملتونه:**

ډېر زیات شمېر هیوادونه څو ملتي دولتونه multinational states دي، چې څو ملتونه په یوه دولت کې سره راغونډ وي. حقیقت دا دئ چې د نړۍ په سلو کې ۳۰ دولتونو کې یو واحد ملت اکثریت نه تشکیلوي. دا خبره باید په پام کې ونیسو چې په دې هیوادونو کې زیاتره اقلیتي ګروپونه د جلاوالي لپاره هڅې نه کوي. مګر ځیني اقلیتي ګروپونه جلاوالي ته میلان لري.

کاناډا یو له هغو هیوادونو څخه دئ چې ملي ویش او تفرقه پکښې موجوده ده. د کاناډا د ۳۲ میلیونه نفوس یوه څلورمه له نژادي پلوه فرانسویان دي (فرانسوي کاناډایان) چې فرانسوي خپله مورنۍ او لومړۍ ژبه بولي. د دې ګروپ اکثریت خلک د کیوبیک Quebec په ولایت کې اوسیږي چې د امریکې یو ایالت ته ورته دئ مګر په سیاسي لحاظ یې خودمختاري ډېره ده. کیوبیک بالکل یو فرانسوی ولایت دئ چې د ۷،۲ ملیونه نفوس په سلو کې ۸۰ یې له کلتوري پلوه فرانسویان دي.

له ډېرو فرانسوي کاناډایانو سره دا احساس پیدا سوی دئ چې د دوی ممیزه کلتور د کاناډا د مسلط انګرېزي کلتور له خوا سولول سوی دئ. داسي احساس هم پکښې راپیدا سوی دئ چې ګواکي له دوی سره په اقتصادي برخه کې هم تبعیض کېږي. د دې ډول احساساتو په نتیجه کې منځته راغلي نېشنلیزم د کیوبیک تجزیه غوښتونکې ګوند منځته راوړ چې په ۱۹۸۰ او ۱۹۹۰ کلونوکي یې د خودمختارۍ، او حتی استقلال، لپاره هلي ځلي وکړې. په کال ۱۹۹۵ کي له کاناډا څخه د کیوبیک د تجزیې په باره کي ریفرنډم سر ته ورسېد چې په هغه کي کیوبیکانو د کاناډا څخه استقلال په ډېر ډنګر اکثریت رد کړ؛ په سلو کي ۵۰،۶ رایي مخالفي او په سلو کي ۴۹،۴ رایي موافقي وې. موضوع یو څه ارامه غوندي سوه. مګر په ۲۰۰۶ کال کي بیا هغه وخت توده سوه چې د کاناډا د عوامو په مجلس [الکه د افغانستان ولسي جرګه] کي د

کیوبیک تجزیه طلبه وکیلانو غوښتنه وکړه چې د کیوبیک د ملت تشکل دې په رسمیت وپېژندل سي. د کاناډا صدراعظم سټیفن هارپر په دې ډول سوال او جواب باندي د عکس العمل ښودلو پر وخت وویل: "که کیوبیکیان غواړي چې د کاناډا په دننه کي یو ملت جوړ کړي، جواب یې مثبت دئ، او که کیوبیکیان غواړي یو مستقل ملت تشکیل کړي، جواب منفي دئ". دا هم معلومه نه ده چې په راتلونکي کي به څه پېښه سي.

**یو ملت، څو دولتونه:**

د ملت او دولت تر منځ دا ډول غیرمتجانس حالت هغه وخت منځته راځي چې یو ملت د دوو یا زیاتو دولتونو په سرحدونو کي سره غزېدلی پروت وي. د هغو دولتونو تر منځ چې مشترک ملت لري، ټکرونه او تصادمات معمولي کار دئ.

د څو دولتي ملت یو موډل هغه دئ چې یو ملت په دوو یا زیاتو دولتونو کي مسلط وي. د ساړه جنګ په دوران کي یو شمېر داسي حالتونه منځته راغلل، چې شمالي او جنوبي ویېټنام، شمالي او جنوبي کوریا، شرقي او غربي جرمني او شمالي او جنوبي یمن یې مثالونه دي. یو واحد ملت چې په دوو دولتونو کي مسلط وي تل دا غوښتنه لري چې دواړه دولتونه سره یو ځای سي. په ویټنام، کوریا او یمن کي د وحدت پر سر تصادمات هم پېښ سوي دي. نن ورځ یوازي کوریا د دغه ډول تقسیم د نمونې په شکل پاته ده.

د څو دولتي ملت بل موډل هغه دئ چې یو ملت په یوه یا زیاتو دولتو کي اکثریت او په یوه یا زیاتو دولتو کي اقلیت وي. ۵،۷ ملیونه البانویان Albanians د دا ډول څو دولتي ملت ډېر ښه مثال کېدای سي. د دوی ۳،۶ ملیونه په البانیا کي اوسي، چې د هغه ځای د نفوس په سلو کي ۹۵ تشکیلوي. ۱،۶ ملیونه البانویان د کوسوو Kosovo دنفوس په سلو کي ۹۰ جوړوي. جګړه هغه وخت رامنځته سول چې په کال ۱۹۹۷ کي د کوسوو البانویانو خودمختاري اعلان کړه. د سربیانو Serbs د ظالمانه انتقامي کمپاین له امله بالاخره، په کال ۱۹۹۹کي، د متحده ایالاتو په مشری ناټو NATO مجبوره سوه چې پر سربستان Serbia باندي هوایي حمله وکړي، د ناټو امنیتي قواوي کوسوو ته ورننوتلې او تر اوسه همالته پاته دي. همدا رنګه، ۵۰۰۰۰۰ نور البانویان په مقدونیه Macedonia کي، د کوسوو او البانیا په سرحدي سیمو کي پراته دي چې د هغه ځای د نفوس په سلو کي ۲۵ تشکیلوي. په کال ۲۰۰۰ او ۲۰۰۱ کي د دې البانویانو او مقدونیې د حکومت تر منځ شخړو بیا هم د ناټو مداخله ضروري کړه.

داسي څو دولتي ملتونه هم سته چې د ملت اکثریت په مربوطه دولت کي نه اوسېږي. د۲۶ ملیونو اذربایجانیانو (اذریان) له جملې څخه یوازي په سلو کي ۲۸ په اذربایجان کي، چې د کسپین د بحیرې په لوېدیځ ساحل کي پروت دئ، اوسېږي. تقریباً په سلو کي ۶۶

اذربایجانیان په ایران او پاته برخه یې په ګرجستان، روسیه او ترکیه کې اوسېږي. د دوی تر منځ هم د تاریخ په اوږدو کې شخړې رامنځته سوې دي.

**بې دولته ملت:**

بې دولته ملت stateless nation د ملت او دولت تر منځ موډل دئ. دا هغه وخت پېښېږي چې یو ملت په یوه یا زیاتو دولتو کې اقلیت وي او د خپل ځان دولت نه لري مګر غواړي چې خپل د ځان دولت ولري. دوه دا ډول بې دولته ملتونه چې په دې وروستیو وختو کې زیات په خبرو کې راوزي، کردان Kurds او فلسطینیان Palestinians دي.

**څو ملته، څو دولته:**

بل موډل چې د ایډال یو ملتي دولت څخه ډېر لیرې دئ، دا دئ چې یو شمېر دولتونه او یو شمېر ملتونه یو پر بل سره راواوړي. دا پرله پېچلی شکل عام دئ او د افغانستان او شاوخوا همسایه هیوادونو په مثال سره یې تشریح کولای سو.

افغانستان، پر هغه راچاپېر هیوادونه، او په هغوی کې میشته ایتنیکي ګروپونه د یو بې ثباته مخلوط بیان دئ چې په هغه کې د ملتونو او دولتونو سرحدونه یو پر بل سره راواوړي. افغانستان په قانوني لحاظ د یو دولت په حیث وجود لري، مګر د یو ډېوالي او ناکامه دولت failed state پر څوکه ولاړ دئ. [یعني چې هر ګړی یې د راچپه کېدو او د یو دولت په حیث یې د له منځه تللو امکان سته]. دا هیواد پر دومره زیاتو ټوټوسره وېشل سوی دئ چې د یوه متحد سیاسي یا ملي هستۍ په توګه یې شته والی په شک کې دئ. که څه هم چې د یرغلګرو په مقابل کې د لنډ وخت لپاره وحدت پکښې راغلی دئ، او یا هم ځیني وختونه غښتلو حکمرانانو سره متحد کړی دئ، مګر د هیواد د ډېرو خلګو لپاره بیا هم افغان والی اساسي سیاسي هویت نه دئ؛ بلکې د دوی لپاره ایتنیکي هویت اساسي دئ. د ایتنیکي ګروپو په حساب په افغانستان کې پښتانه د نفوس (۴۲٪)، تاجیک (۲۷٪)، هزاره (۹٪)، ازبک (۹٪) او نور واړه ګروپونه ۱۳٪ تشکیلوي.

که د افغانستان شاوخوا همسایه هیوادونو ته نظر واچوو نو خبره نوره هم پرله پېچلې کېږي. ۱۰ میلیونه پښتانه په افغانستان او ۱۸ میلیونه په پاکستان کې اوسېږي. په مجموع کې دا بې دولته پښتون ملت د خپل دولت، پښتونستان، د جوړولو څه ارمانونه هم لري. د افغانستان په شمال کې بیا تاجیکان، اوزبکان او یو لږ شمېر ترکمنان پراته دي چې په تاجیکستان، اوزبکستان او ترکمنستان کې د خپلو ایتنیکي ورونو سره تړلي دي. نور بیا هزاره ګان دي چې ځانونه د چنګېزخان او منګول Mongol نژاد بقایا بولي، دوی هم د یو مستقل هزارستان خوبونهویني. دا ګروپونه په ۳۴ ژبو او لهجو خبرې کوي.

همدا علت دئ چې په ۲۰۰۱ کال د امریکې د متحده ایالاتو لپاره دا اسانه وه

چي افغانستان اشغال او د طالبانو رژیم نسکوره کړي، مګر د یو موفق او متحد افغاني دولت جوړول څه اسانه کار نه دئ. اصلي پرابلم، د یوه کارپوه په قول، دا دئ چي "[په افغانستان کي] یو عملي دولت نسته، او د ملت والي احساس وجود نه لري... په افغانستان کي د ویني شراکت او خپلوي ډېر اهمیت لري".

**د نېشنلیزم مثبت او منفي اړخونه:**

نېشنلیزم یو مثبت قوت دئ، مګر نړۍ ته یې خرابۍ او مایوسۍ هم راوړي دي. د ملګرو ملتونو په عمومي اسمبله کي د کاتولیکانو پخواني مشر پاپ جان پال Pope John Paul د دوه ډوله نېشنلیزم په باب خبري کړي دي. یو مثبت نېشنلیزم دئ چي پاپ "له خپل وطن سره د مینې ... او نورو کلتورونو او ملتونو ته د احترام" په توګه تعریف کړی دئ. بل منفي نېشنلیزم دئ چي د نېشنلیزم یو کرغېړن شکل دئ چي خلګو ته د نورو کلتورونو او ملتونو په مقابل کي بې احترامي ورزده کوي او د خپل ملت نېکمرغي د نورو ملتونو د بدمرغۍ په بیه غواړي".

**مثبت نېشنلیزم:**

ډېر پوهان پر دې خبره اتفاق سره لري چي په خپل فلسفي او تاریخي تخلیق کي، نېشنلیزم یو مثبت قوت وو. اوس هم ځیني ګټور اړخونه او ډېر پلویان لري.

**نېشنلیزم ډیموکراسي پر مخ بیایي:**

د یوه محقق په نظر، "په اوسنۍ نړۍ کي نېشنلیزم یو هغه عمده نظم دئ چي ډیموکراټیک شعور ځان پکښي ځرګندوي". دلیل یې دا دئ چي نېشنلیزم دا مفکوره پر مخ بیایي چي سیاسي قدرت په ولس کي پروت دئ او حکومت د دې قدرت څخه یوازي د ولس په نماینده ګي کار اخلي. ډیموکراټیک نېشنلیزم چي د امریکې د انقلاب محرک هم وو ټولي نړۍ ته، په تېره بیا تر دوهمي عمومي جګړې وروسته پراخ سوی دئ. د نړۍ د ډیموکراټیکو هیوادو تناسب چي په کال ۱۹۵۰ کي ۲۸٪ وو، په کال ۲۰۰۵ کي ۴۶٪ ته زیات سو.

**نېشنلیزم د امپریالیزم مخه نیسي:**

د تېرو سلو کالو په جریان کي، نېشنلیزم د اطریش – مجارستان، عثماني ترکیې او روسیې د امپراتوریو په له منځه وړلو کي عمده رول لوبولی دئ. همدارنګه نېشنلیزم تقریباً د ټولو استعماري امپراتوریو کمبله ورټوله کړه، چي د اروپایي هیوادو او د امریکې د متحده ایالاتو په کنټرول کي وه. د دې مستعمراتو په ډله کي شرقي تیمور East Timor په دې اواخرو کي استقلال تر لاسه کړ. شرقي تیمور د مړژواندي پرتګالي امپراتورۍ وروستۍ بقایا وه چي خلګو یې په کال ۱۹۷۵ کي استقلال اعلان کړ. ازادي لا زېږېدلې نه وه چي اندونیزیا شرقي تیمور په ځان پوري ملحق کړ. د شرقي تیمور د خلګو لپاره اندونیزیایي باداران هم د پرتګالي بادارانو په شان د منلو وړ نه وه. د خودمختارۍ self-determination لپاره د دوی دوامداره مبارزې او بین المللي فشارونو بالاخره

اندونیزیا مجبوره کړه چي په کال ۱۹۹۸ کي یوه ریفرندم ته غاړه کښېږدي. د شرقي تیمور په سلو کي ۷۹ خلګو د استقلال په ګټه رایي ورکړې. د اندونیزیا نظامیانو هڅه وکړه چي د جنایتکارانو د یوې ډلي پر لاس شرقي تیمور کنټرول کړي. دې جنایتکارانو د شرقي تیمور په زرهاوو خلک ووژل، څو بالاخره د استرالیا او ملګرو ملتونو د نظامي مداخلې په نتیجه کي امنیت په وجود راغی. ملګرو ملتونو United Nations د شرقي تیمور لپاره لومړی یوه انتقالي اداره منځته راوړه، او وروسته یې په کال ۲۰۰۲ کي د حکومت واګي یو کاملاً مستقل شرقي تیمور ته وروسپارلې.

**نېشنلیزم اقتصادي پرمختک ته لاره خلاصوي:**

مستعمرې او د دولتو په دننه کي اقلیتي ملتونه اکثر وخت له اقتصادي پلوه استعمار سوي دي. په افریقا کي او هم د نړۍ په نورو برخو کي ډېر هیوادونه تر اوسه هم له استعماري میراث څخه د ځان خلاصولو لپاره سختي هلي ځلي کوي. استعماري قدرتونو د مستعمرو منابع د خپلو ګټو لپاره ځني وړي دي او د دوی د اقتصادي زېربنا لپاره یې ډېر لږ څه سر ته رسولي دي. دا کار د شوروي اتحاد په شان څو نژادي امپراتوریو کي، چي په تیوریکي لحاظ یو لاس او متحد ګڼل کېدل، هم سر ته رسېدلی دئ. د پخواني شوروي اتحاد شپږ جمهوریتونه ( اذربایجان، قزاقستان، قیرغیزستان، تاجیکستان، ترکمنستان، او اوزبکستان) چي کله د روسیې/ شوروي تر کنټرول لاندي وه، له نظره لوېدلي وه. همدا اوس هم د دوی د سړي پر سر متوسط ناخالص داخلي تولید (یعني GDP) د روسیې یو پر دریمه تشکیلوي، او د کوچنیانو د مړیني اندازه د روسیې څلورچنده ده. ښکاره خبره ده چي دا نوي هیوادونه به د ډېرو کلونو لپاره د اقتصادي ستونزو سره لاس و ګرېوان وي، مګر د دوی له نظره، لږ تر لږه به د دوی هڅي د خپلو هیوادو هوسایني او ښکمرغی ته متوجه وي.

**منفي نېشنلیزم:**

د خپلو ټولو ښېګڼو سره، نېشنلیزم تاریک اړخ هم لري. د نېشنلیزم بد مخي د ملتونو تر مینځ له روابطو څخه راپیل کېږي. د تعریف له مخي، نېشنلیزم د نورو هغو مشابه خلګو سره، چي یو ملت جوړوي، د خپلوۍ یو احساس دئ. له نورو څخه د ځانو بېلول په اصل کي کوم بد شی نه دئ، مګر دا کار د موږ - ګروپ we-group په ښه بللو سره د منفي نېشنلیزم په لار کي لومړی ګام دئ. څرنګه چي موږ د خپل ځان هویت په موږ - ګروپ سره څرګندوو، نو د دوی - ګروپ څخه د ځان بېلولو خوا ته میلان لرو. کله چي موږ ځانونه له نورو څخه بېل وګڼو، نو لاندي منفي تمایلات راته پیدا کېږي:

له نورو سره د مرستي کولو بې علاقه ګي، د نورو ردول exclusionism [استثنایي] ځان بې ساری .

بلل exeptionalism او له بېګانه وو څخه بېره xenophobia، داخلي ظلم او خارجي تعرض.

**له نورو سره د مرستي کولو بې علاقه ګي:**

زموږ د توپير او جلاوالي نېشنلستي احساس د نورو په وړاندي زموږ د مسئوليت احساس محدودوي. ډېر خلګ نه يوازي دا چي د خپل ګروپ په دننه کي له نورو سره مرسته کول غواړي، بلکي، د عامه اجتماعي خدماتو د بودجې له لاري، له نورو سره مرسته کول خپل مسئوليت ګڼي. مګر په بين المللي سويه ډېر لږ خلګ د مسئوليت احساس کوي. د نورو هيوادو وحشتناکي پېښي زموږ ډېره لږ توجه ځانته جلبوي، مګر که دا ډول حوادث زموږ په وطن کي پېښ سي نو بيا موږ ډېر جدي عکس العمل ښکاره کوو. د افريقا د لويي صحرا Sub-Saharan Africa په سيمه کي، يوازي په سلو کي ۴۱ خلګ تر ۵۵ کلنۍ پوري ژوند کوي، چي په مقايسه يي په سلو کي ۸۰ امريکايان تر ۵۵ کلنۍ پوري ژوند کوي. د افريقا په لويه صحرا کي د کوچنيانو د مړيني چانس يو کلنۍ ته تر رسېدلو مخکي له امريکې سره په مقايسه ۱۵ واره زيات دئ.

که څېري دا تراژيدي په امريکا کي پېښه واى، ډېر زيات مالي او بشري منابع به يې، د له منځه وړلو لپاره په کار لوېدلي واى. مګر، د امريکې د حکومت غبرګون د افريقا د لويي صحرا د دې انساني تراژيدۍ په وړاندي يوازي په ۴ بليونه ډالره اقتصادي او بشري مرستي پوري محدود دئ. دا مقدار پيسې د افريقا د لويي صحرا د نفر پر سر يوازي ۵ ډالره کېږي او هر امريکايي ګواکي يوازي ۱۳ ډالره ورکوي. آيا دا پيسې کفايت کوي؟ ډېر امريکايان فکر کوي چي کافي دي. يوې احصايې ښودلې ده چي په سلو کي ۶۴ امريکايان فکر کوي چي د دوی هيواد بيخي زياتي پيسې پر خارجي مرستو لګوي. يوازي په سلو کي ۸ امريکايان فکر کوي چي د دوی هيواد بيخي لږ پيسې پر خارجي مرستو لګوي. يو علت يې دا دئ چي، د همدې احصايې له مخي، په اوسط ډول امريکايان فکر کوي چي د دوی د فدرالي بودجې په سلو کي ۳۱ پر خارجي مرستو لګېږي. واقعيت دا دئ چي د امريکې ټولي خارجي مرستي د فدرالي بودجي يوازي په سلو کي يو تشکيلوي. د دې معنی دا نه ده چي امريکايان خير غوښتونکي خلګ نه دي. بلکي معنی يې دا ده چي امريکايان، د نوري نړۍ د خلګو په شان، تر نورو هيوادو د خپل هيواد د خلګو په وړاندي د زيات مسئوليت احساس کوي.

**د نورو ردول:**

هر کال، په ميليونو خلګ د سياسي خشونت، فقر او نورو مجبوريتونو له امله خپل کورونه پرېږدي. مهاجرين اوس يو جهاني پرابلم ګرځېدلی دئ. د مهاجرينو په مقابل کي د نېشنليزم د (موږ – دوی) نظر تقريباً نړيوال مقاومت منځته راوړی دئ. په ۴۰ هيوادو کي د خلګو د يوې

سروې له مخې، په اوسط ډول په سلو کې ۷۶ خلګو غوښتل چې د دوی هیواد ته د مهاجرینو پر راتګ محدودیتونه نور هم پسې زیات سي. د امریکایانو یو لوی اکثریت (۸۱٪) او د کاناډایانو (۶۹٪) دا ډول احساس لري، په داسې حال کې چې د دې هیوادو اکثریت خلګ په خپله مهاجرین دي. دوه هیوادونه چې پر مهاجرینو د لږمحدودیت غوښتونکي دي، جاپان (۴۳٪) او جنوبي کوریا (۳۷٪) دي. مګر خبره دا ده چې دوی همدا اوس د مهاجرینو ډېر سخت قوانین او په نتیجه کې ډېر لږ مهاجرین لري.

**ځان بې ساري بلل او له پردیو څخه بېره (بېګانه هراسي):**

خپل ملت ته اړېنت ورکول د نېشنلیزم مثبت اړخ دئ، مګر تر نورو د ځان لوړ بللو احساس او حتی له نورو څخه بېره او کرکه هم منځته راوړي. بېګانه هراسي xenophobia د نورو ملتونو څخه د بېرې او کرکې احساس دئ. ځان بې ساري بلل exceptionalism چې خپل ملت تر نورو ملتو ښه بللو عقیده ده، لږ څه زهرجنه ده مګر بیا هم دردونکې ده. د ۴۳ هیوادو یوې نړیوالې سروې ښودلې ده چې په ۳۹ هیوادو کې اکثریت خلګ "بالکل" یا "تر ډېره حده" له دې څرګندونې سره چې "زموږ خلګ بې عیبه او بېکمل نه دي، مګر زموږ کلتور تر نورو عالي دئ" موافق وه. په مجموع کې په سلو کې ۶۸ سروې سوو خلګو دا ډول فکر کاوه. په دې سروې کې هیندیانو تر ټولو زیات ځانونه بې ساري بللي او، د عامه ذهنیت په خلاف، لږو فرانسویانو ځانونه بې ساري بللي دي.

**کلتوري تبعیض او ظلم:**

په هغو دولتونو کې چې یو مسلط ایتنیکي ګروپ او یو یا زیات اقلیتي ګروپونه وجود ولري، مسلط ګروپ تقریباً هر وخت د سیاسي، اقتصادي او اجتماعي امتیازاتو خاوند وي. په ډېر افراطي حالت کې، ځیني وختونه مسلط ګروپونه پر اقلیتي ګروپونو ظلم کوي او حتی د نسل د له منځه وړلو لپاره یې هڅې کوي. په بوسنیا Bosnia او کوسوو Kosovo کې د سربیانو د نژادي لېونتوب، په رواندا کې د هوتو Hutus له خوا د توتسي Tutsis قتل عامونه، او په دې نژدې وختو کې په سوډان کې د عربو مسلمانانو له خوا د عیسوي تورپوستانو او مسلمانو تورپوستانو ډله ییزې وژنې یې مثالونه دي. تر ټولو وحشتناک مثال د نازي جرمني دئ چې اډولف هټلر په خپل مشهور کتاب مین کمپف Mein Kampf کې جرمن نژاد یو خالص "ارین نژاد" او د انساني تکامل مظهر بللی دئ. په مقابل کې یې بیا روسان او نور سلاویک خلګ یې پر ښنډه ولاړ انسانان [یعنی لږ انسانان] بللي دي چې د مریانو په توګه باید کار ځنې واخیستل سي. یهودیان او جتان Gypsies د ده په نظر "غیرانسانان" وه چې د لېونیانو او همجنس بازه homosexuals خلګو سره باید محوه سي.

**خودمختاري:**

Self-Determination

یوه بله خلا چي د نېشنلیزم په ایډیال او واقعیت کي رامنځته سوې ده هغه د خودمختارۍ موضوع ده. خودمختاري په خپله هم مثبت او منفي اړخونه لري.

**د خودمختارۍ مثبت اړخونه:**

ډېرو کتونکو د خودمختارۍ پر نسیپ ستایلی دئ. د ډېرملتي دولتونو nation-states ریښې د دوی د خودمختارۍ لپاره په غوښتنه او مبارزه کي پرتې دي. د مثال په توګه، د امریکې د ازادۍ اعلامیه Declaration of Independence له برتانیې څخه د خودمختارۍ په اعلام سره پیل کېږي.

د خودمختارۍ د ملاتړ لپاره ډېر دلایل وجود لري. د نېشنلیزم پر ګټو سربېره، چي مخکي یې بیان وسو، خودمختاري له ایتنیکي ستم څخه ډېرو راولاړو سوو ظلمونو ته خاتمه ورکوي. که چېري ټولو ایتنیکي ګروپونو اجازه درلودای چي په سوله ییز ډول استقلال لاسته راوړي او یا یې هم کولای سوای چي له خپلو ایتنیکي ورونو سره یو ځای سي، نو به د بوسنیا، چیچنیا، کوسوو، شرقي تیمور، رواندا، سوډان تراژیدي ګاني او په همدې شان نوري ویرجني پېښې منځته نه وای راغلي.

**د خودمختارۍ په هکله اندېښني:**

د خودمختارۍ پرنسیب په عمل کي له ډېرو ستونزو سره مخامخ دئ. لویه ستونزه یې دا ده چي په نړۍ کي په زرهاوو ایتنیکي ګروپونه وجود لري. له هر ایتنیکي ګروپ سره بالقوه دا امکان سته چي ملي شعور پکښې راپیدا سي او د استقلال یا خودمختارۍ لپاره هڅې پیل کړي. که د خودمختارۍ پرنسیب ومنل سي او هر ایتنیکي ګروپ خپل ځانته یو مستقل دولت ولرلای سي نو به نړۍ د دې دومره زیاتو دولتو سره څه حالت ولري؟

د خودمختارۍ یوه ستونزه د سره جاروتلي ګروپونو بېلول دي. ډېر ملتونه په ډېرو ځایونو کي یو له بله سره جاروتلي دي. بوسنیا Bosnia یې یو مثال دئ؛ د بوسنیا مسلمانان، کروټیان Croats او سربیان Serbs په یوه ښار، یوه جاده او یوه بلډینګ کي یو ځای سره اوسېدل. که چېري دوی هر یو ځانته استقلال اعلان کړي نو څوک څرنګه کولای سي دا ګروپونه سره بېل او قلمرو ورته وټاکي؟

د خودمختارۍ بل پرابلم دا دئ چي اوسني دولتونه له کاناډا (کیوبیک) څخه رانیولې بیا تر برتانیې (سکاټلنډ او ویلس) او هسپانیې (باسک او کاتالونیا) پوري باید منحل سي. امریکایان هم باید په دې پرابلم کي چرت ووهي. ځکه چي دوی له ډېر پخوا څخه د خودمختارۍ د حق پلوي کړې ده نو د امریکې په متحده ایالاتو کي دننه به د خودمختارۍ پرنسیپ څرنګه عملي کېږي؟ که چېري، د مثال په توګه، د هاوایي اصلي اوسېدونکي native Hawaiians د خودارادیت د پرنسیپ له

مخي وغواړي چي ځانته مستقل دولت جوړ کړي، آيا ټول امريکايان يې بايد ملاتړ وکړي؟

په نوروځايو کي بيا د ايتنيکي پلوه متجانس دولت جوړول هم خپل ځانته ستونزي لري. په افغانستان کي د بېلابېلو ايتنيکي ګروپونو څخه د يو ملتي دولت nation-state جوړول په ډېرو سيمو کي د دې ګروپونو [چي يو په بل کي سره جاروتلي دي] سره بېلول غواړي. له بلي خوا، تاجيکان او ازبکان به ښايي وغواړي چي د تاجکستان او ازبکستان سره يو ځای سي. او همدارنګه، د پښتنو لپاره د پښتونستان په جوړولو کي بايد د پاکستان، ايران (؟) او افغانستان ټوټې سره ومښلول سي.

د خودمختارۍ بله ستونزه دا ده چي د داسي مستقلو هېوادونو شمېر مخ پر زياتېدو دئ چي په خپله د خپل پايښت لپاره ډېره لږ توانمندي لري. آيا معقوله ده چي د ميکرو [ډېر واړه] دولتونو منځته راتلو ته، چي ډېر لږ نفوس، کوچنی قلمرو، او محدود اقتصاد ولري، اجازه ورکړه سي؟ ځيني دا ډول دولتونه، لکه اندورا Andorra، موناکو Monaco او سان مارينو San Marino له ډېر پخوا راهيسي وجود لري. مګر د کلونياليزم تر بې اعتباره کېدلو وروسته د ميکرو دولتونو شمېر مخ پر زياتېدو دئ. د ميکرو دولتونو ستونزي به وروسته په تفصيل سره وڅېړل سي. مګر دومره بايد ووايو چي، د نړۍ د هېوادونو په سلو کي ۳۳ د امريکې د لاس انجلس تر ايالت لږ نفوس لري. دا ډول هېوادونه زيات وخت د خپل ځان دفاع نه سي کولای او له اقتصادي پلوه د ځان تکيه کولو توان نه لري. دا ډول هيوادونه به له يوې خوا له اقتصادي پلوه د نوري نړۍ د اوږو بار وي، او له بلي خوا د دې امکان وجود لري چي د قدرت خلا په وجود راوړي او بې ثباته هيوادونه ځني جوړ سي.

که د خودمختارۍ او د دولتونو د تجزيې اوسنی حالت دوام وکړي، پر سيمه ييز او حتی نړيوال ثبات باندي اثر ښندلای سي. بين المللي ثبات ته د خودمختارۍ او ميکرو دولتونو يو بل تهديد د امريکې د متحده ايالاتو له خوا په کال ۲۰۰۳ کي د عراق له يرغل سره منځته راغی. د نورو پايلو تر څنګ، د صدام حسين راچپه کېدلو د عراق د تجزيې چانس زيات کړ. عراق اوس د شيعه، سني او کردي مسلمانانو تر منځ وېشل سوی دئ. لکه مخکي چي وويل سول، د کردانو نهايي هدف د يوه مستقل کردستان منځته راوړل دي. د کردانو و دې هدف ته د رسېدلو هڅي به يقيناً د عراق له شديد مقاومت سره مخامخ سي. همدا رنګه، عراق به ښايي له ترکيې سره، چي هلته هم په کردي سيمو کي د کردستان جوړولو هلي ځلي رواني دي، لاس يو کړي. د عراق د تجزيې بله مسئله دا ده چي ښايي د ختيځ عراق شيعه ګان د شيعه ايران پر خوا ورولغړي. پر دې سربېره، يو کمزوری عراق به نور د دې توان ونه لري

چي د ایران او سعودي عربستان تر منځ، چي دواړه تېل لرونکي غني هیوادونه دي، یو مؤثر حایل وګرزي. د صدام تر راچپه کېدلو وروسته امریکې او نورو خارجي قواوو د عراق د تجزیه کېدلو مخه نیولې ده؛ مګر کله چي دوی له عراقه ووزي، لکه چي ښکاري ډېر ژر به ووزي، نو د یوه رښتیني او متحد عراق راتلونکې تاریکه ښکاري.

د موجودو هیوادونو لپاره د نوي هیوادونو د په رسمیت پېژندلو موضوع ډېره پېچلې او مهمه ده. کله چي نوي هیوادونه منځته راځي، نو موجوده هیوادونه، له ملګرو ملتونو سره د دوی د تعهداتو له امله، مجبور دي چي پر دوی باندي د خارجي تعرض پر وخت د دوی دفاع وکړي. نوي غریب هیوادونه د اقتصادي مرستو اوسني سازمانونه، چي همدا اوس هم کافي منابع نه لري، نور هم سره کښېکاږي. بله خبره دا ده چي د نوو بېلتون غوښتونکو نهضتونو په رسمیت پېژندنه نور تجزیه غوښتونکي نهضتونه تشویقوي.

څرنګه چي ډېر ایتنیکي ګروپونه د خودمختارۍ لپاره تلاښ کوي نو دا سوال راپیدا کېږي چي آیا دوی باید حمایه سي او که یې مخه ونیول سي. که حمایه کېږي نو کوم ایتنیک ګروپ باید حمایه سي او ولي باید حمایه سي. که یې مخه نیول کېږي نو هم دا سوال راپیدا کېږي چي ولي باید حمایه نه سي. دا ښکاره خبره ده چي په دې اوسنۍ پرله پېچلې نړۍ کي د خودمختارۍ د پرنسیپ عملي کول ډېر مشکل کار دئ.

**نېشنلیزم او د هغه راتلونکې:**

خلګ هر وخت خپل هویت په یوه یا بل ګروپ کي څرګندوي. دا ګروپ کېدای سي چي کورنۍ، قوم، مذهب او یا کوم بل شی وي. مګر نېشنلیزم چي د سیاسي هویت یو مشخص شکل دئ او د مشترک هویت خلګ، د دوی قلمرو او حکومت سره مښلوي د اوسني وخت شی دئ. ځیني پوهان د نېشنلیزم ریښې ډېر لرغوني عصر ته رسوي، مګر پر دې خبره پوره اتفاق موجود دئ چي نېشنلیزم د یوې مهمي سیاسي مفکورې په توګه یوازي له تقریباً ۵۰۰ کالو راهیسي وجود لري او د یو عمده سیاسي هویت د منبع په توګه تر نونسمي او شلمي پېړۍ پوري لا خپل اوج ته نه وو رسېدلی.

د نېشنلیزم راتلونکې به څرنګه وي؟

څرنګه چي نېشنلیزم هر وخت موجود نه وو، نو نه بدلېدونکی هم نه دئ. کېدای سي چي زموږ د یو عمده سیاسي هویت په توګه کمزوری او حتی ښایي له منځه ولاړ سي. د دې امکان په نظر کي نیولو سره، موږ باید دا پوښتنه ارزیابي کړو چي ایا د نېشنلیزم سرسختي [یعني دوامداره موجودیت] او یا له منځه تلل به مثبت که منفي کار وي.

**د نېشنلیزم د له منځه تلو اټکل:**

دوهمي عمومي جګړې د نېشنلیزم په باب د ډېرو خلګو فکر ته تغیر ورکړ. دوی د جنګ او د جنګ د وخت د

وحشتونو ملامتیا پر فاشیزم او متعرض نېشنلیزم اچوله. کتونکي په دې عقیده وه چي د ۳۰ کالو په دوران کي د دوو عمومي جګړو پېښېدلو دا وښودله چي پر ملي خصومت او ضدیت باندي ولاړ دولتي سیستم نه یوازي دا چي تر وخت تېر دئ بلکي خطرناکه هم دئ. د عمومي تباهی د وسلو منځته راتللو بیا دا خطر نورهم جدي کړ. په کال ۱۹۴۵ کي د ملګرو ملتونو په منځته راتلو سره د هیوادو تر منځ د رقابتي نېشنلیزم پر ځای د تعاوني ګلوبالیزم د انکشاف افکار را پیدا سول.

له دې ډول افکارو سره ډېرو پوهانو د نېشنلیزم او ملي دولت د له منځه تللو او یا لږ تر لږه د تدریجي زوال پیش بیني وکړې. مګر داسي څه پېښ نه سول او نېشنلیزم د یو جهاني قوت په توګه نور هم زور واخیستی.

**د نېشنلیزم سرسخته پایښت:**

د نېشنلیزم په دوامداره قوت کي شک نسته. د دوهمي عمومي جګړې راهیسي هغه دولتونه چي پر ملي خودمختاری باندي د ټينګار کولو له لاري منځته راغلي دي درې چنده سوي دي. د نېشنلیزم د زیات پرمختګ عمده محرکه قوه په افریقا، اسیا او نورو سیمو کي امپریالیستي ضد ازادي غوښتونکي نهضتونه وه. په دې وروستنیو کلونو کي نیشنلیزم په اروپا کي هم دوباره ځان را ښکاره کړ. د لوېديځ او ختیځ جرمني له اتحاد څخه جرمني جوړ سو. هغه دولتونه چي له پخوا څخه موجود وه سره تجزیه

سول. د چکسلواکې څخه د چک او سلواک په نوم دوه هیوادونه جوړ سول او یوګوسلاویا پر ۷ هیوادو تجزیه سوه. بل دا چي، د روسیې او په وروسته کي د شوروي د څو نژادي امپراتوري د سره پاشل کېدلو څخه ۱۵ نوي هیوادونه منځته راغلل. د ۱۹۸۹ کال راهیسي، د شرقي تیمور، ایریتیریا، نامیبیا او پالاو څخه ماسېوا، ټول ازادی ته رسېدلي هیوادونه په شرقي اروپا یا روسیې پوري اړه لري. (FRS). همدارنګه، په برتانیه کي د سکاټیانو، ایرشیانو او وېلشیانو تر منځ هم ځیني نېشنلیستي غوښتني را پیداسوي دي؛ په هسپانیه کي باسکیان او کاتلان، او د یوروپ په نورو سیمو کي هم دا ډول ګونګوسې وجود لري.

یو نظر دا دئ چي نېشنلیزم به د سیاسي هویت په توګه تر ډېره وخته دوام ومومي او موږ به په سیاسي، عملي او تیوریکي لحاظ په ملت پوري تړلي یو.

نور بیا ...

* * * * *

## د ملاقات آداب

۱. د ملاقات (لیدني) په پیل کي لومړی سلام واچوئ (کتاب الاداب).

۲. له کوم نابلده سړي سره چي ملاقات کوئ نو تر سلام کولو وروسته لومړی باید ځان یو بل ته ور وپېژنئ (اداب المعاشرت).




# د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست نوي خپاره کړي کتابونه

**ادبيات:**

د ارواښاد عبدالباري آشنا اثر دئ چې په ۱۳۳۶ ش کال په کندهار کې چاپ سوی وو، اوس د یوه ضرورت پر اساس د دوهم وار لپاره د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست په ښکلي صحافت او مناسبه کچه چاپ کړ.

**انار ګل:**

د ۱۳۸۸ ش کال د انار ګل مشاعري شعري مجموعه ده. چې د ټولو پر ښتنو شاعرانو شعرونه پکښې راغلي دي. دا دوهمه د انارګل مشاعري مجموعه ده چې د اطلاعاتو او فرهنګ په نوښت چاپیږي.

**کچکول (لومړۍ برخه):**

د استاد محمد معصوم هوتک د علمي او څېړنیزو مقالو مجموعه ده. چې په دې نژدې ورځو کې د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست له نوري په ښکلي صحافت او برابره قطعه د چاپ په ګڼه سمبال سوې ده.

**کچکول (دوهمه برخه):**

دا هم د استاد هوتک د پورتني لړۍ دوهمه برخه ده. چې د بېلابېلو موضوعاتو په برخه کې یو لړ علمي او تحقیقي مقالې په خپره غېږه کې احاطه کوي. نوموړې مجموعه هم په دې نژدې ورځو کې د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست په نوښت چاپ سوې ده.

**زړه په لاس کې:**

د ځوان شاعر ښاغلي احمد فاني شعري مجموعه ده چې د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست په نوښت پر سپین کاغذ او رنګه وقایه خپره سوې ده. په نوموړې مجموعه کې د ښاغلي فاني پر غزل سربېره د هغه ځو ځلوریزې هم چاپ سوي دي.

**په لاسونو کې سکروټې:**

د کندهار د ځوان شاعر ښاغلي خیرمحمد هڅاند شعري مجموعه ده چې په دې نژدې ورځو کې خپره سوې ده، په دې مجموعه کې د ښاغلي هڅاند پر غزل سربېره، آزاد شعرونه او ځلوریځې هم خپرې سوي دي.

**خزانه تا به ویل:**

د ځوان شاعر ښاغلي حبیب الله قلم مل شعري مجموعه ده چې د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست په نوښت پر سپین کاغذ او رنګه وقایه او ښکلي ډیزاین خپره سوې ده. په یاده مجموعه کې د ښاغلي قلم مل پر غزلو سربېره آزاد شعرونه هم چاپ سوي دي.

**تاریخ افغانستان در عصر ګورګانیان هند:**

دا د افغانستان او سیمې د وتلي پوهاند او علامه ارواښاد حبیبي هغه تحقیقي اثر دئ چې د افغانستان د تاریخ پر یوه خاصه زماني مقطع رڼا اچوي. نوموړی اثر په ۱۳۴۱ ش د تاریخ ټولنې له خوا په کابل کې خپور سو وو. چې د اوس لپاره ئې د یوه خاص ضرورت پر اساس ئې دوهم چاپ د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست له لوري په رنګه او ښکلې بڼه تر سره سوی دئ.

**هلمند:**

د ارواښاد کاندید اکاډمیسین محمدابراهیم عطایي په زړه پوریه تحقیقي اثر دئ. چې د هلمند ولایت تاریخي او کلتوري مسائل په خپله غېږه کې تر تحقیق لاندې نیسي، نوموړی اثر د دوهم ځل لپاره په ښکلې بڼه د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست په نورو کتابونو کې چاپ سوی دئ.

او یو شمېر نور کتابونه

ګران علاقه مندان کولای سي چې د دې ټولو کتابونو د تر لاسه کولو لپاره د اطلاعاتو او فرهنګ ریاست د ورځپاڼې عرفې او یا په ښار کې مشهورو کتاب پلورنځیو ته مراجعه وکړي.

